

دري میاشتنی

# تورا بورا

دوولسم کال دوهمه گڼه پرلپسې یوځلویښتمه میزان، عقرب، قوس ۱۳۹۴





## د یووېشتمې پېړۍ اتل



- نوی منتخب حکومت( ! ) او د هیواد وضعیت
- حکم شرعی صلح نمودن مجاهدین با حکومت مرتد کابل
- په مشرقي ترکستان کې د چینایانو لخوا مسلمانانو سره څه تیرېږي؟؟



- توافق هستوی ایران یا مقدمه شرارت ها درمنطقه
- د عزم طوفاني څپو د دښمن بېړۍ غرقه کړه !
- د سوریې تقسیم د ښکېلاکګرو ستر پلان او د عربي نړۍ راتلونکی..






- د افغانستان داسلامي حزب د امیر او ستر جهادي شخصیت محترم خالص بابا رحمه الله ځوی او ځای ناستی او د توره بوړه جهادي محاذ مسئول

مولوي صاحب انوارالحق مجاهد سره مرکه

زما په اند تر ټولو مهمه داده، چې مونږ په اسلام ځان پوه کړو او په رېښتني اسلام سم روان شو، اسلام د ځان تابع ونه ګرځوو بلکې ځان د اسلام تابع کړو

دري مياشتنۍ

خپلواکه ، اسلامي ، جهادي او ملي خپرونه

# توره بوره

دولسم کال دوهمه ګڼه، پرلپسې يوڅلوېښتمه، ميزان،عقرب،قوس ۱۳۹۴هـ، ش.

| ګڼه | عنوان | مخ |
|---|---|---|


**مؤسس :**

غازي اجمل

**د امتياز څښتن :**

توره بوره فرهنګي اداره

**مسؤل مدير :**

مبارز افغان

Yousafafghan25@yahoo.com
Toorabora@yahoo.com

**کتنپلاوي :**

پوهندوی ديدار ،حسن عادل ،سميع الله مبارز
محمد خوګيانی

**کمپوز او ډيزاين :**

ابوزبير افغان

**بيه :**

افغانستان: ۲۰ افغانۍ
پاکستان: ۳۰ کالداري
تيراژ: ۱۵۰۰ پينځلس سوه

**يادونه:**

*- په توره بوره کې خپاره شوي مطالب د ليکوال خپل نظر څرګندوي، د اداري توافق ورسره شرط نه دی.

*- ټولو هغو ليکوالو ته چې د پرديو تر اغېز لاندې نه وي راغلي اسلامي او ملي فکر ته ژمن وي، بلنه ورکوو چې خپلې ليکنې په دري او پښتو ژبه اداري ته راولېږي.

*- ستاسو نيوکو او نيکو وړانديزونو ته ستر ګې په لار.



## سرمقاله



# وا اسلاماااه!

د اسلام سپیڅلی د ین د هغه ځانګړ تیاوو له امله د کوموپه بر کت چې په نورواديانوبرلاسه شوی د الله جل جلاله په نزد يوائېنې منل شوی د ین بلل شوی د ی . ان الدين عندالله الاسلام همدامطلب د ی ، چې پر ته له اسلام څخه د نورو اديانو د يندارا ن په الهي د ربار کې له مقبوليت څخه رټل شوي د ي . د اچې د اسلام مقدس د ين په خپله اصيله بڼه کې د انسانانو د فطرت او طبيعي استعدادونو سره پوره، پوره اړخ لګوي اوهيڅکله هم اسلام خپل پيروان په د اسې غوښتنو (اوامرو او نواهيوو) نه مکلف کوي ، چې له توان نه يې پورته وي، نوځکه هغه ټول په ټوله کې په خپله د ستر د عوت اوجلب اوجذب پياوړي صلاحيتونه لري اومونږ په ننۍ ټولنه اوتاريخ کې ډير د اسې خلک وينو ، چې پر ته له د ی ، چې کوم مجاهد يا د اعي يې اسلام ته راوبلي، محض د اسلام په صحيح مطالعه په د ې د ين مشرف شوی اوترپايه تينګ پرې ولاړ د ی ، له همدې امله د اسلام سره حسد اوحقد لرونکي د ښمنان هڅه کوي، چې اسلام د نورومليتونوپه وړاندې تشويه اوبدنام کړي ، د غه هڅې هغه وخت لاپسې ګړندۍ شوي کله ، چې د هجرت په مينځنيوسليزو(پيړيو) کې د غرب په ټولنوکې مسيحيت اويهوديت د افراط اوتفريط له کبله ماتې وخوړه اوددې د واړوايدياليوژيونعم البدل پاک اسلام د غربي ټولنوددين خوښوونکوګړو ، زړونو ته لاره پيداکړه اوډيرغربي وګړي ، چې په هغې کې پوهان ،سياستمداران،سرمايه د اران اوځوانان شامل وه ، د اسلام د مقدس د ين قبلولوته مخه کړه ، يهود اونصارا چې په د ې وپوهيدل چې د اسلام د منلو د ې بحراوبهيرته بندونه اوموانع نشي اچولاي نوپه د اسې لارو يې غور او فکر وکړ چې د هغوپه پلی کولو سره د خلکوپه زړونوکې د اسلام سره کرکه اونفرتونه پيداکړي د الحاد،کمونيزم ،علمانيت اوپه اسلامي ټولنوکې د اسلام په نامه د خرافاتو اوبدعاتودترويج د سيسې يې رامينځ ته کړی.

اسلام د ټول بشريت بلکې د ټول مخلوق لپاره د خيرخواهۍ اومهربانۍ د ين د ی، اسلام د ی چې د ټولوانسانانوترمينځ د عدالت اوانصاف بنسټونه ږدي د دوستۍ اودښمنۍ (ولاء اوبراء )حدود ورته ټاکي .اسلام د عفوې ،تسامح، اوبخښنې د ين د ی ، خوددې سره سره مجرمينوته د سزاپه ورکولوکې کله د وجوب اوکله د جوازپه مرتبه قاطع اوصريح احکام صادروي، اسلام په مکافاتواومجازاتومشتمل د ين د ی ،دمختلف الطبع انسانانوله طبايعواوفطرت سره مناسب ،نه د ومره سخت د ريځه چې څوک يې زغملاي اوتحمل کولاي نشي اونه د ومره نرم چې مجرمينوته د جرم د ارتکاب جرات ورکړي ، بلکې په ټولو اړخونو کې له افراط اوتفريط څخه مبراء متوسط اومعتدل کامل د ين د ی.

اسلام په د غسې واقعيت اوحقيقت کې په خپله د هغه لوريته ستردعوت اوبلنه د ه.

ددې سره سره چې کوم خلک د اسلام له منلومخ اړوي اويا د ارتداد لاره نيسي تر ډيره د ټولنې بدې اغيزې اوبهرنې لاملونه د ي ، چې ځينې انسانان د يته اړباسي لکه شرعي نصوص چې هم د ې واقعيت ته اشاره کوي.

(کل مولود يولدعلى الفطرة فابواه يهودانه اوينصرانه اويمجسانه)

مطلب د اچې هرڅوک له شروع نه په اصلي فطرت (اسلام) سره د نيا ته راځي خو اکثره چې بيا په نورولارو د رومي ، که والدين يې بې لارې يې د هغوي د پيروئ په وجه له لارې کوړ شي.

ابن حجرصاحب په فتح الباری کی ليکلی : الکفرليس من ذات المولود ومقتضى طبعه بل انما حصل بسبب خارجى ،فان سلم من ذالک السبب استمرعلى الحق.

مطلب د اچې د طبيعي د ين (اسلام)څخه په مخ اړولو کې د خارجي لاملونو رول ډيراهم اودپام وړ د ی ، مونږ ګورو چې د د غه خارجي لاملونوڅخه يوهم د دې د ين په اړه د د ښمنانومنفي تبليغات د ي ، هغوي له اسلام څخه غلط تعبيرکوي او د اسلام هغه خواوې چې په مجازاتواومجرمينوته په ټاکلوحدودواويا په ځينومحدوديتونوشاملي د ي د ټول اسلام په توګه تعبيروي اوغواړي په د ې توګه العياذبالله اسلام د وحشت سخت د ريځئ اوقساوت په تهمونو متهم کړي اونوروملتونوته يې د زړه بوګنوونکي نظام په توګه وروپيژني ، خوپه د ی کارکې بياځينوهغومسلمانانو،چې ځانونه اصيل مسلمانان بولي د اسلام د ښمنانوته په د ې ډول د لايل په لاس ورکړي ، چې ريښتيا هم د حدودوپه تنفيذ اودمجرمينوپه مجازات کې له غلواوتشدد څخه د ومره کاراخلې چې اسلام ورڅخه برئ د ی. د غسې اعمال د اسلام د ښمنانوته د استدلال لپاره د خامو موادو د ورکولو په معنى د ی، ترڅوخلک قانع کړي ، چې اسلام يوازې د سرونو د وهلو،داندامونو د پريکولو او د جزاء په نامه د انساني کرامت د توهينولودين د ی ، د غه خلک چې ګمان کوي اسلام يې د توري اوقمچيني په زور نافذ کړي په د ې ، د ې هم پوه شي چې د ډيرو هغو انسانانوزړونو ته يې د اسلام د ننوتلولارې تړلي چې يا خوداسلام پوره مطالعه نه لري (ضعيف العقيده)مسلمانان د ي اويا خوددعوت له لارې اسلام ته تازه مايل شوي د ي .

(ديسروا ولاتعسروا ، وبشروا ، ولا تنفروا) نبوي ارشادات همدغسې متشددينوته متوجه د ې ، خوددې څيړنې معنا هيڅکله د ا نه د ه چې شرعي حدود د ې تعطيل اودمجرم مجازات د ې متوقف شي ، لکه مخکې مو چې وويل اسلام په مجازاتواومکافاتومشتمل د ين د ی ، خودمجازاتوپه برخه کې اسلام مسلمانانوته له ډيراحتياط څخه د کاراخستلوتوصيه کوي ، د جهادپه هکله حکم کوي چې (اذاضربتم فى سبيل الله فتبينوا)دجهادپه نامه چې څوک وژنئ په اړه يې تحقيق وکړئ ، د اسې نه چې د کفرپه تهمت مسلمان ووژنئ اودالهي قهراوغضب مورد وګرځئ . د حدودوپه اړه د نوروهغوټولوشرايطوسره چې د حدودودتنفيذدمشروعيت لپاره ټاکل شوی ، بيا هم د درء الحدود بالشبهات قاعده د ا راښايي چې د حدودوپه تنفيذ کې له بيباکئ ، اوخواهش پرستئ څخه ډډه وشي ، خوبياهم کله چې د جهادپه نامه د چا وژل يامجازات کول اويا د حدودوپه تنفيذ د چا د اندام غوڅول يا وهل جواز پيداکړي ، هغه بايدپه همغه طريقه ترسره شي ،چې اسلام يې لارښودنه کوي له مثله کولو ، توهينولواوپه تعذيب سره له وژلوبې ډډه وشي ، د جرم په اندازه مجرم وګڼل شي اوپه همغه اندازه مجازات شي،همدغه راز له بلې خوا ځينې مستشرقين اوداسلام د ښمنان په ټولنه کې اسلام يوارتجاعي د ين معرفي کوي، چې په د ې اړه علماني فکرلرونکوهڅه کړې، چې اسلام هم تر مسجد اوخانقاه پورې محدود



اومحصورمعرفي کړي ، ترڅودژوندپه ورځنيوچاروکې د اسلام د مداخلې مخه ونيسي اوداسلام هغه مزايا او مثبت اړخونه چې د اسلامي ټولنې د ژوند چارې تنظيموي اواسلامي ټولنه په د نيوي لحاظ د ارتقاء اوتمدن خواته وړي له خلکو پټ وساتي ، يواځې اويواځې د اسلام هغه برخه چې ترفردي عباداتواواخروي سرنوشت پورې تړاو لري د ټول اسلام په توګه ټولنې ته وروپيژني اولکه د تحريف شوي عيسويت په ډول له اسلام څخه د خلکودااميدقطعه کړي، چې د ين د دوي د ښه ژوندغوره ذريعه اولمړئ د رجه ضامن د ی ، خو د د وي سره د اسلام ضد د غه توطيه اوسازش کې هغه څوک مرسته کوي ، چې ځانونه په ژبه اولباس د اسلام اصلي وارثان ګڼي په عملي توګه يې خپله د ينداري اوتقوا ترمسجداوخانقاه پورې تړلی ، په خپلو کورنيو،ټولنيزواوسياسي چارو کې د اسلام لارښودنوته اعتناء نه کوي اوددې برسيره د واکمنوپه د رباركې د هغوی د خوښې لپاره اسلام تحريفوي د غسې علماء سوء اودرباري ملايان د اسلام د مقدس د ين په تشويه اوتحريف کې د علمانيانوسره همغږي د ي ، که د وي فکرکوي چې د ين يې ساتلی اودزهداوتقوالاره يې غوره کړې په لويه اشتباه کې لويدلي ،هغه خلک چې د اسلام منلو ته د مطالعې اويا د دعوت له لارې مايل شوي د علماء سوء د اعمالو له کبله چې ظاهرا د دين مظهراودنبوي وراثت وارثان ګڼل کيږي د علمانيت د تبليغاتي پروژې تراغيزې لاندې راځي اوهغه رغبت اوشوق چې د اسلام په اړه يې لري په کرکه اونفرت بدليږي.

دغه د واړه لوريچې په افراط اوتفريط کې اخته د ي ، اسلام ته د خدمت پرځاي د اسلام په بيخکنئ پسې لګيا د ي ،په تاسف سره بايد ووايو چې نيم اسلام ته د ټول اسلام نوم ورکول اوياهم له غيراسلامي اعمالوڅخه په اسلام تعبيرکول د استونزې ځيږوی .له بله پلوه ځانونه اونورپه د اسې څه مکلف ګڼل چې شرعاً په هغې مکلفيت نه لري ټولنه اوافراد،حرکتونه اوحکومتونه د انحراف اوبې د ينئ خواته وړي ، څکه له توان نه پورته مکلفيت سرته رسول ناشونې د ه ، د مثال په توګه که يوڅوک ټوله شپه په تهجدووينښه تيره کړي اوبيا سهاريا ماسپښين ورڅخه لمونځ قضاء يا تاخير شي ، خپله د غه غلطي به هم په د ينداريئ توجيه کوي ، نوځکه اسلام له د ې څخه منعه کړي چې څوک د ې ټوله شپه لمونځونه وکړی اوهره ورځ د ی روژې ونيسې ، همدغه رازپه ټولنيزو،سياسي اوسلطاني امورو کې واکمنوته نه ښايي چې خپل ځانونه اوټولنې په د اسې څه مکلف کړي چې له برداشت څخه يې پورته وي، د يسروا ، ولاتعسرو په حکم بايد ځانونه اوملېتونه په مالا يطاق امتحان کې ونه غورځوي ، چې د اسلام ډيره لويه د اعيه مخې ته کړي اوبيا يې چې سرته نشي رسولاي ، نوددې پرځاي چې په خپلوغلطيو اعتراف وکړي اوپه د عوه کې خپل پاتې راتلل ومني ، په حيلو حرام حلالوي اوغيراسلامي موافقوته د اسلام د رنګ ورکولوپه کوښښ کې د شرعي نصوصوغلط تعبير اودعلماء سوء او د رباريانوبې بنسټه فتواګانواودشريعت نادرواوپيچيده مصطلحاتولکه الاخذباخف الضررين ،من لم يکفرالکافرفهوکافر،الضروريات تبيح المحذورات اوداسې نوروته اړکيږي، چې ډيرځلې د اسې هم کيږي ، چې په ټولنه اوتاريخ کې د اسلام د بدنامولوسبب ګرځي.

نن سباله يوې خوا د اسلام سپيڅلی د ين دحاسدو يهودانو ، مسيحيانو، کميونستانو او ملحدينو د بدنامولو ترګوزارونو او تاړاکونولاندې دی اوله بله پلوه د ناپوهه جذباتي مسلمانانوکړنې دي ، چې د اسلام سمعه اووقارتخريبوي ،همدغه رازمنافقين اوداسلام په نامه قدرت اوچوکئ ته ځان رسوونکي، د پيسواوشهرت ليوني د رباريان اوبزدله اوچاپلوس په د رواغو د اسلام پلويان د اسلام د بدنامولواوبيخ ايستلوپه هڅه کې د ي.





دتاسف ځای د ی ، چې د اسلام په ځپلو کې د اغیاروترڅنګ اسلام ته منسوب ځینې علمي اوعسکري ځواک هم برخمن د ی ، همدغه رازداسلامی امت د ځپلوپاره نړیوال کفر د فکري اوعقیدوي اختلاف سره سره د مسلمانانوپه وژلو،بدنامولو،شکنجه کولواوتوهینولو کې همغږي د ي ، خوپه د ې هکله هم د اسلامي امت ځینې نا اهله ځواکمن په خپل علمي اوعسکري ځواک د دوي ملا ورتړي اوهغه تورونه ،چې اغیارېې مسلمانانوته منسوبوي د وي یې هم زمزمه کوي اويا خودهغوي مدعی ته ثبوتونه په لاس ورکوي ، د علماءسوء اودرباري ملا یانوفتواګانواوداسلامي ډولنوپه سر د نا اهلو واکمنو واکمنۍ د ه ، چې د اسلامي امت په خلاف جګړه یې اوږده اوګرمه ساتلې .داچې د مسلمانانوپه ضد نوي اېتلافونه رامینځ ته کیږي اوداسلامي ډولنوواکمن د دغوایتلافونوبرخه جوړیږي اوعلماء سوء ورته د مشروعیت د لا یل لټوي د اسلام په ضد د ا جګړه غیرمتناهي ګرځوي اودمسلمانانوترمینځ د اورد بلیدوسبب ګرځي.

کیف ینام الالم یوما ، والدم یصرخ بالورید *** بل کیف یسکن الالم یوما ، وکل وقت جرح جدید

واسلاماه ! تکالبوا لیطفؤا نورالهدی حسدا شدید *** واسلاماه !تکالبوافحقدهم ملاء الفضا ، بل یزید

کیف ینام الالم یوما ، والدم یصرخ بالورید *** بل کیف یسکن الالم یوما ، وکل وقت جرح جدید

واسلاماه !صرخةالحر اللذي سئم الهوان ذل العبید *** واسلاماه !صرخة الام اللتي قتلوالها الطفل الولید

کیف ینام الالم یوما ، والدم یصرخ بالورید *** بل کیف یسکن الالم یوما ، وکل وقت جرح جدید

واسلاماه ! دمعة البنت اللتي هتک العفاف غصبا وعید *** واسلاماه !رجفة الطفل اللذي نام ینتظر الفجر السعید

کیف ینام الالم یوما ، والدم یصرخ بالورید *** بل کیف یسکن الالم یوما ، وکل وقت جرح جدید

فیا امة الاسلام ! عودي وجددي دعوة العهد المجید *** فالشرع سیف ناصر ، وانه لنعم الطریق السدید

کیف ینام الالم یوما ، والدم یصرخ بالورید *** بل کیف یسکن الالم یوما ، وکل وقت جرح جدید

# په دوه سري حکومت کې اصلي لوبغاړي څوک دي؟

لیکوال: عاصم "څارګر"

په داسې حال کې چې یو لوري د کابل په لارو کوڅو کې د وینو د لښتیو بهولو ګواښونه کول او بل لوري بیا پر اصولو، قوانینو او د خلکو پر رایو د سوداګرۍ نه کولو ټینګ واهه، له یوې بلې لویې وچې څخه یوازې یو تن راغلو او دلته یې د دوی په اصطلاح د اته میلیونه افغانانو (رایې) په لغته ووهلې او دوه سنګر نیولي یې سره د سولې پر یو ډګر راټول کړل.

دا چې په یوازې سر یې د یو ملت پرېکړه وکړه او په یوازې ځان یې د افغانستان په څېر هیواد کې چوکۍ ووېشلې، د امریکا د بهرنیو چارو وزیر جان کیري و، مخالفین بیا عبدالله او اشرف غني وو او د دوی پر سر د یو بل وژونکي د دوی پلویان وو، چې د جان کیري په وړاندې یې د اطاعت سر ښکته کړ او د دواړو روغه جوړه یې مصلحت وباله! دا نو شو (خپلواک حکومت) او دوی پرې نوم کېښود (د ملي یو والي حکومت).

په دې اداره کې چې واکمنانو یې ویل د ټولټاکنو له لارې به یې مشر ټاکل کیږي، هغسې ونه شول، د ولس د (رایو!) - هر څومره چې وې- احترام ونه شو، چې پلویانو یې ویل ملي او افغاني به وي، پرېکړې یې افغانانو نه، بلکې امریکایانو وکړې، چې کاندیدانو یې ویل راتلونکې اداره به (سهامي شرکت!) او وېشل شوې نه وي، هغسې ونه شول، او چې په سلو ورځو کې یې د هیواد د هر اړخیز پرمختګ غورې وهلې، په درې سوه ورځو کې یو ګام هم وړاندې ولانهړل، ځینو سره پوښتنه پیدا شوه، چې په دې دوه سري حکومت کې اصلي لوبغاړي څوک دي؟

په اصطلاح د ټولټاکنو بهیر ټولو ته معلوم دی، ټولو ولیدل چې له غربه راوارد شوی او په وچ زور پر افغانانو تپل شوی دغه دود په افغاني خاوره کې په کومه بې شرمۍ تمام او د کوم برخلیک سره مخ شو، دا ثابتوي چې د کابل اوسنۍ اداره په هغه ډول هم د ملت په خوښه او اراده رامنځته نه شوه، چې په نورو دیموکراتیکو هیوادونو کې رامنځته کیږي، بلکې بیا هم پکې د پردیو لاسونه تر څنګلو پورې دخیل وو.

د نویو بدلونونو په پایله کې د حامد کرزي په ښه یوه بله قوه هم رامنځته شوه او په دې توګه افغانستان اوس یوازې لویدیځ استعمارګر ته نه دی ورپاتې، بلکې شرقي ځواک هم په دې هیواد کې خپله ونډه لري او په ډېره ښه توګه ترې کار اخلي.

د حامد کرزي تر پوره دیارلس کاله واکمنۍ وروسته افغانستان د شرق او غرب تر منځ وویشل شو او هیواد رښتیا هم د نیابتي جګړې ډګر وګرځېد، هغه که د پاکستان او هندوستان وي، که د چین او امریکا وي، هغه که د روسیې او امریکا وي، که د امریکا او ایران وي، او که د داسې نورو.

که د فیصدۍ په لحاظ سره یې وګورو نو د کابل ادارې واکمني اوس شپېته سلنه د لویدیځو طاقتونو او څلوېښت سلنه ختیځو سره ده، د لویدیځو طاقتونو (امریکا او اروپا) عمده مامورین اشرف غني او عبدالله دي او د ختیځو هغه بیا حامد کرزی او د هغه ډله ده، دوی بیا په داخل کې هم سره ویشلي او له ډېرو خواوو څخه اوامر تر لاسه کوي.

مثلاً د کابل اداره نېغ په نېغه د امریکا او اروپايي ټولنې تر اوامرو لاندې ده، خو په ضمني توګه عبدالله د ایران او هندوستان، رشید دوستم د ازبکستان او ترکیې، اشرف غني پر دې ټولو سربېره د پاکستان او سعودي عربستان ګټې او خوښې ته هم ګوري.

حامد کرزی بیا د هندوستان، روسیې او چین پر لیکلې سکریپټ تمثیل کوي.

لکه چې ځینو تمه کوله، یا په دې انتظار و، چې هیواد به د مفکر په تفکر سره لږ تر لږه د پښوا په نسبت یو څه د خپلواکۍ پر لور ولاړ شي، هغسې ونه شول، بلکې لا سره ووېشل شو او اداري نظم په ټوله معنی د نورو په واک کې ورغلو.
د پورته وېش په اساس دوه سرې حکومت یوازې هغه خبره ده چې ملت ته ښودل کیږي او د دې پوښ لاندې هغه څو سرې وژونکې اژدها پټه ده، چې هر سر یې د هیواد یوې برخې ته خوله وازه کړې ده.
که څه هم د پښوا په نسبت کابل ته د اشغالگرو هیوادونو د لوړ پوړو چارواکو سفرونه کم شوي، خو دا چې د مخکې په پرتله یې کار اسانه شوی او د یو نسبي نرم مزدور سره مخ شوي دي، نو د نظم او اداري چارې د کابل لپاره ټاکل شوي ځانگړې استازي او سفارتونه پر مخ وړي، نژدې هره ورځ د امریکا، اورپایي اتحادیې، ایران او هند په سفاروتونو کې امران د خپلو مامورینو سره غونډې کوي او له دې لارې په غیر مستقیمه توگه د کابل اداري چارې پر مخ وړي.
د خپلې دې ادعا د ثبوت لپاره دوه بېلگې کافي بولم چې یوه یې د نویو وزیرانو ټاکل او بل یې د یو گاونډي هیواد سره د استخباراتي تړون لاسلیکول دي.
د کره معلوماتو تر مخې کله چې اشرف غني د نوې کابینې د لست پر جوړولو کار پیل کړ، نو په لومړي سر کې د خپلو قریبانو لخوا د ستونزو سره مخ شو، په دې معنی چې عبدالله، دوستم، سرور دانش، محقق، ارغندیوال، خلیلي، حامد کرزي او ځینو نورو پکې خپله ونډه غوښتله، د دې ونډې غوښتل یوازې په دې معنی نه و، چې د هغوی دا غوښتنه پر منّت بناء وه، بلکې دا یې خپل حق او پر ارگ پور باله او دا یې ورسره پر شویو ژمنو وفا بلله، دغه غوښتنې بیا د ممثلینو تر شا د ولاړو اصلي ملاتړو وې، هغه هیوادونه چې مخکې مو یادونه وکړه.
له یو اوږده کشمکش وروسته وزارتونه ووېشل شول، خو له ارگ او حتی امریکا له سفارته راوتلي کره معلومات وایي چې دغه ټول لستونه له دې وروسته د امریکا سفارت ته وړل کېدل او هلته له (وکتل شو)، رد یا پاس څخه وروسته د فساد خونې (پارلمان!) ته وړاندې کېدل، د وزیرانو په ټاکلو کې د امریکا د سفارت او نورو هیوادونو رول دومره پیاوړی و، چې که خوښه یې نه وای، نو لومړۍ معرفي کېدل نه او که د کومې اړتیا له مخې یې په لست کې شامل کړي وای، نو د بریالیتوب چانس یې نه لېدل کېده.
همدا علت و، چې د لسو میاشتو په اوږدو کې د هر وزارت لپاره څو اشخاص بدل شول، او له لسو میاشتو وروسته هم کابینه نیمگړې ده.
دغه راز کله چې د کابل اداري د استخباراتو ریاست د یو گاونډي هیواد سره د تړون کولو پرېکړه وکړه، نو لومړۍ هغه څوک چې مخالفت یې وکړ، هغه پخوانی ارگ مشر حامد کرزی و، باور کیږي، چې د حامد کرزي دې مخالفت له نوي ډهلي او ماسکو څخه سرچینه اخیسته او ویې کولای شول، په نوي ارگ مشر ومني چې له دې تړونه لاس په سر شي.
لنډه دا چې د اسلامي امارت له واکمنۍ وروسته هیواد د خپلواکۍ مزه نه ده څکلې او حکومتي اداراتو په مستقلانه توگه عمل نه دی کړی، سربېره پر دې د نوي دوه سري حکومت په رامنځته کېدو سره دغه حالت نور هم بدتر شو او د روسیې په خبر ځینې هغو هیوادونو ته هم د دې هیواد په چور او تالان کې بلنه ورکول شوه، چې افغانانو شپږ ویشت کاله مخکې د سر په کاسه کې اوبه ورکړې او له هیواده یې شړلي وو.
اصلاً د کابل اداري واقعي زمامداران هماغه هیوادونه دي، چې له بانکونو څخه یې پېسې په کابل کې خپلو ممثلینو ته راځي، تر هغه وخته د کابل اداره گوډاگۍ او اصلي واکمن بل څوک دي، تر څو چې دغه نظام د پردیو په مالي تمویل چلیږي.
پای



# نوی منتخب حکومت(!) او د هیواد وضعیت

نجیب "فراهي"

د تېر میلادي کال )۲۰۱۴( د سپتمبر په نهه ویشتمه اشرف غني د افغانستان د منتخب ولسمشر(!) په توګه لوړه وکړه، او ورسره سمدستي، څو دقیقې وروسته یې هغه ژمنه او شعار هم مات کړ، چې ویل یې له حکومته به سهامي شرکت نه جوړوي، په دې معنی چې د ډاکټر عبدالله په شکل کې یو څوک یا ځینې نور څوک یې هم له ځانه سره په تخت کېنول، ګویا که حکومت هغې رسۍ ته ورته شو، چې یو سر یې یو او بل سر یې بل چا نیولی، او دواړه په معکوس لور حرکت کوي.

جوړ او خپلواک هیوادونه د یو سیستم او نظم سره سم خپلې چارې پر مخ وړي، سره له دې چې د ګڼو سیاسي ډلو کور وي، خو د قانون په وړاندې ټول د اطاعت سر ښکته کوي، د داسې هیوادونو مشران هیڅکله نه شي کولای په خپل لومړي فرمان قانون مات یا لږ تر لږه تغییر ورکړي، خو د بې وزله افغانستان څخه د نړۍ په کچه منتخب شوی مفکر بیا دا ډول نه دی، هغه په خپل ابتکار سره هر څه کولای او عملي کولای شي.

هره انساني ټولنه او د هغوی اداره کوونکي دولتونه بیا د انسان تر ژوند پورې تړلې ټولې چارې پر مخ وړي، او هره یوه هومره اهمیت لري، لکه بله یې چې لري، د بېلګې په توګه د نړۍ په ارامو، خپلواکو او د خپل قانون سره سم روانو هیوادونو کې د چاپېرل ساتنې موضوع ته هومره اهمیت ورکول کیږي، څومره چې د یو بل هیواد سره د استخباراتي، اقتصادي، نظامي او یا سیاسي تړون لاسلیکولو ته، او دا ځکه چې هغوی هر اقدام د هیواد په جغرافیه کې پر اوسیدونکو وګړو د هغې د اثر په رڼا کې کوي، نو ښکاره خبره ده، چې وړه چاره به کوچنی او غټه چاره به ستر اغیز ولري، همدا دلیل دی چې بیا نو موضوعات هم توپیر نه لري.

زموږ په هیواد کې بیا حالت بل ډول دی، دلته حکومتداري یوازې او یوازې تر امنیت پورې رامحدوده شوې ده، تعلیم او تربیې، روغتیا، کرهنې، ټولنیز پرمختګ، د کلتوري یرغل مخنیوي، مثبت ملي، سیمه ایز او نړیوال سیاست څارل، او تر مخې یې پالیسي عیارول، د اسلامي اقدارو ساتنه او ورته نورو موضوعاتو له لویه سره یادونه نه کیږي.

که تر یو بریده د کابل اداري اوسني واکمن په سیاست کې ښکیل دي، نو هغه هم د نورو په اشارو ناڅي، او د نورو ورکړل شوي پلانونه عملي کوي، سیاست هم بیا تر امنیت پورې تړلی ښکاري، او سیاسي پالیسي هم پر امنیتي اوضاع بربرولای شي.

که د کرزي د اداري خلفې اداري له رامنځته کېدو روسته د افغانستان په عمومي وضعیت خبره کوو، نو تر ډېره بریده به یې یوازې پر امنیتي اړخ یا د مبارزې په ډګر کې د دوښمن پر ماتې غږیږو، ځکه چې په نورو میدانونو کې کوم ځانګړی بدلون نه دی رامنځته شوی.

که لنډه یادونه یې وکړو نو د وولس د سوکالۍ او رفاه لپاره کوم ځانګړی اقدام نه دی شوی، او هغه تودې تودې ژمنې چې د (ع) او (غ) لخوا خلکو ته ورکول کېدې یوه هم نه

یوازې دا چې عملي شوې نه ده، د پېل نښې یې هم نه ښکاري.
په واکمن قشر کې انتشار او داخلي دوښمني په هماغه اندازه ده، چې د جهاد وارثان په کابینه کې د خلقي او پرچمي تر عنوان لاندې ځوک نه شي زغملای، او کمونست لوری بیا، د تش په نامه مجاهد د مخالفت لپاره کمپاین کوي.
بهرني یرغلگر د پخوا په څېر په هیواد کې میشت دي، سربېره پر دې د دوه سري حکومت مشر ورسره تړون هم لاسلیک کړ، چې هغوی ته یې په هیواد کې د لا زیات فعالیت او خلاص مټ کار کولو حق ورکړ.
په حکومتي چوکاټ کې هم پر ځای د دې چې د پخوا په نسبت دې دولت یو څه نسبتاً زیاته خپلواکي تر لاسه کړې وای، د واک د وېش په موضوع کې یې د پخوا په نسبت هم په غاړه کې د غلامۍ طوق نور هم راتاو شو، دا چې پخوا وزیران، سفیران او والیان د نورو په خوښه ټاکل کېدل، اوس ولسوالان، امنیه قوماندانان او حتي ولایتي رئیسان هم د نورو هیوادونو، استخباراتي ادارو، تمویلوونکو بنسټونو او پردیو لخوا گومارل کیږي.
په دولتي ادارو کې فساد، په تلویزیونو او رادیوي خپرونو کې فحشاء او د پردي کلتور ترویج، په زندانونو کې د بې گناه بندیانو شکنجه او ځورول، پر کورونو بریدونه، بې گناه وگړي وژل، تېپي او بندیانول، د نورو هیوادونو د استخباراتو لخوا د افغانستان له خاورې څخه د خپلې گټې لپاره کار اخیستل، او ټول هغه څه روان دي چې د حامد کرزي په پاچاهۍ کې وو، په دې برخو کې هېڅ راز توپیر نه دی راغلی، البته که راغلی نو هغه په امنیتي برخه کې دی.
په دې ځای کې باید یادونه وکړو، چې د امنیت په اړه جهادي لوری او هغوی (گوډاگی لوری) جلا جلا تعریفونه لري، او باید پرې وپوهیږو، په لنډه توگه ویلای شو، چې دوی نا امني د مجاهدینو پرمختگ او بریا بولي، خو موږ بیا نا امني، د غلاوو، لارې شکولو، سړې تښتولو، ځمکو غصب، پر ناموسونو تیری، شپیني عملیات، ړندې بمباری، د پولیس او اردو په جامه کې له عام وولس باج او جزیه اخیستل، او په ټوله کې هغه جرمونو بولو، چې د همدې (حکومت) له خېټې څخه راوځي، او پر ولس تپل کیږي.
که په همدې نقطه تم شو، نو د افغانستان د کابل د نوې ادارې تر چتر لاندې په تېرو یوولسو میاشتو کې به د هیواد عمومي امنیتي وضعیت دا سې ترسیم کړو چې:
لکه څنگه یې چې تمه کېده د کابل ادارې په تعبیر د ولسمشرۍ ټولټاکنې هومره بریالۍ نه وې، او هغه له دې کبله چې د خورا جنجالونو سره مخ او رقیبان پکې د یو بل وینو ته کېناستل، له بلې خوا له همدې ورځې څخه د مجاهدینو عملیات د نوې ادارې په وړاندې پېل او تر اوسه یې دوام کړی دی.
په دواړو پړاوونو کې د مجاهدینو بریدونه او د انتخاباتو د مخنیوي هڅې هومره بریالۍ وې، چې تصور یې نه کېده، څومره چې د کابل ادارې او بهرنیانو اعلان وکړ، دهغې په څلورمه برخه وگړو هم په ټاکنو کې گډون ونه کړ، دوښمن خپله هم په ډېرو سیمو کې په دې اقرار وکړ، او دا یې روښانه کړه چې د رایو صندقونه په تزویر او جعلکارۍ سره ډک کړای شوي دي.
نه یوازې دا چې د مجاهدینو د بریدونو له کبله وولس نه شول کولای چې په ټاکنو کې گډون وکړي، بلکې ولس په عموم کې د مخکې شویو ټاکنو په نتایجو پوهېدلی، او نه یې غوښتل په دغه ډرامه کې براخه والي.
له دې وروسته بیا د هیواد په گوټ گوټ کې د سیمې ازادېدل پیل شول، او یوه په بلې پسې سیمې د مجاهدینو تر کنټرول لاندې راغلې.
د عزم عملیاتو له پیل راهیسې مجاهدینو اوه ولسوالۍ په بشپړه توگه نیولې، چې په هغې کې د کندز ولایت د دشت

ارچي او چهار درې، د بادغيس ولايت د جوند، د نورستان ولايت د وانت وايګل، د غزني ولايت د خوګيانو، د سرپل ولايت د کوهستانات او هلمند ولايت د نوزاد ولسوالۍ شاملې دي.

سربېره پر دې د شمالي ولايتونو سرپل، فارياب، بغلان او بادغيس، په شمال ختيځو ولايتونو کندز، او بدخشان، په جنوبي ولايتونو هلمند، اروزګان او زابل کې، او د هيواد په ځينو نورو سيمو کې مجاهدينو د کتنې وړ پرمختګونه وکړل، پراخې سيمې يې تر واک لاندې راغلې، له دوښمن څخه يې دومره وسلې، وسايط او جنګي مهمات په غنيمت ونيول، چې د مياشتو مياشتو لپاره مجاهدين تمويل کولای او له نويو رانيولو څخه يې مستغني کولای شي.

همدې پرمختګونو په وولس کې مجاهدينو ته نور ځای هم ورکړ، عام وګړي ډاډه شول چې سوکالي او ارامي يوازې او يوازې د اسلامي شريعت تر سيوري لاندې موندلای شي، او همدا لامل دی پر عام ملت سربېره هره ورځ د دوښمن له ليکو څخه سرتيري او نور مامورين را جلا او د مجاهدينو د صف سره يو ځای کيږي.

که ووايو چې عموماً د دوه سري حکومت له راتګ او يرغلګرو د سمبوليک کمښت څخه وروسته د هيواد عمومي وضعيت د مجاهدينو پر ګټه راوڅرخېد، او لا په همدې مسير روان دی، نو بې ځايه به نه وي.

له بلې خوا بيا مقابل لوری د مجاهدينو دې پرله پسې برياليتوبونو دومره وارخطا کړ، چې خپل ځان يې له ياده ووت، او په يوه منډه يې د هغه چا غېږې ته ځان ورساوه، چې تر پرونه يې دوښمن باله.

اشرف غني او اتباعو يې د انتخاباتي مبارزو پر مهال داسې احساس ورکاوه، او داسې يې انګېرله چې ګوندې په افغانستان کې روان جهادي بهير د کوم ګاونډي هيواد (پاکستان) لخوا پر مخ وړل کيږي، او دهغه په وينا پاکستان له داسې کړنو څخه ځيني امتيازات تر لاسه کول غواړي، دا بې فکره مفکر په دې ګومان و، چې په کتابونو کې لوستې ځو کرښې د افغانستان په څېر يو پيچلي هيواد کې په اسانۍ سره عملي کولای، او د دې سرساموونکې جګړې د ګټونکي لقب تر لاسه کولای شي.

خو افسوس، او بيا هم افسوس چې ځينې پوهان هم په دې پلاستيکي مفکر وغولېدل، او ملاتړ يې ورڅخه اعلان کړ، هغه چې په خپلو دماغو کې يې د نړۍ د ملتونو پر سينو د اور ګاډي پټلۍ، او پاخه سرکونه راتېرول، او هغه چې د هيواد له هره ولايته يې د اسيا په کچه يو تجارتي مرکز جوړاوه ونه شول کولای، کابل وساتي، او خپل ځان خوندي کړي.

د مجاهدينو کاميابيو اشرف غني او عبدالله په خپلو فکرونو کې تېرباسل او اسلام اباد ته يې سجدې پيل کړې، هغه چې عبادت يې چې (هندو سترې خدای ناراضه) ته ورته شو، او هغه د جګړې او سياست د ناکام لقب وګاټه.

که خبره راخلاصه کړو، نو ويلای شو، چې د کابل اداره يوازې او يوازې تر ښارونو منحصره ده، او هلته هم د يرغلګرو عسکرو، او پېسو په پښو درولې، که د هغوی مرسته او ملاتړ نه وي، نو د بې کارۍ، د اقتصادي ستونزو، سوچه ملي بوديجې نيشتوالي، اداري فساد، په اوج کې او د چارواکو لخوا د ملت په وړاندې د دوښمنۍ په حال کې دغسې يوه اداره يوه اونۍ هم دوام نه شي کولای.

پای



# د عزم طوفاني څپو د دښمن بېړۍ غرقه کړه!

پوهندوی دیدار

د امیرالمؤمنین په وفات دښمنانو داسې انګېرله چې ګوندې اسلامي امارت به ټوټه ټوټه شي او دوی به وتوانیږي، چې د حکومت لړزیدلي تهدابونه بیا سره کوشېر کړي. نه دا چې یوازې امارت په خپل حال پاتې شو، بلکې د فتوحاتو لړۍ لا پسې ګړندۍ شوه . موږ تېره میاشت د څو ولسوالیو د سقوط شاهدان وو. نوزاد، موسی کلا او د بدخشان ارغستان ولسوالي د یوې میاشتې غټ محصولات دی .د تېرې میاشتې په جریان کې چې کومې پوستې، قرارګاوې او کوم محلي چیک پواینټونه وهل شوي، بې شماره دي .د عزم له پیله بیا فتوحات بیخي په داسې انداز دي، چې په داسې ترینګلیو حالاتو کې یې تصور هم نه کېده. د کندز دشت ارچي، امام صاحب ولسوالۍ، فاریاب قیصار او استانه بابا، نورستان وانت وایګل، کنړ ګوسلک سیمه، بغلان ستره قرارګاه، بدخشان کې د شپېتو کلیو فتحه هغه بارز مفتوحه نقاط دي، چې دښمن ترې انکار قدرې نه شي کولی .له دې وراخوا په مفتوحه سیمو کې د مجاهدینو داسې حرکات چې بیخي دولتي رسمِ ګذشت ته ورته وي، دا ښیي چې له نوموړو سیمو د دښمن هر ډول تلسط ویستل شوی .جګړه یوازې په دې نه ګټل کیږي، چې اسباب او امکانات په تمامه معنا برابر وي، بلکې امکاناتو سره سره عزم او اراده ام اړینه ده. د جنګیالي روحیه لومړیتوب لري، چې په کومه روحیه جنګیږي .همدا لامل دی، چې د اسلامي امارت مجاهدین په ډېرو کمو او بیخي تاریخ تېرو امکاناتو باندې خپل فتوحات پر مخ بیایي. ډېر کرت موږ د دولتي عسکرو وینا واورو چې په ډېرې نهیلۍ راتښتېدلي وي او په ډېره ویرژنه لهجه خپل مشران مخاطبوي .جګړې ته که په فاتحانه عزم ورننوځي، نو تر هغې چې د ماتې واقعي شرایط نه وي پیدا شوي، د ماتې تصور هم نه پیدا کیږي، بلکې ماتې سره که مخ هم شي، د یو موقت شا تګ په بڼه یې اخلي. مجاهدین الحمدلله په همدې فاتحانه انداز ورننوځي، خپل شا تګ د کر وفر حالت ګڼي، ځکه خو څه موده وروسته د یقیني فاتح په بڼه ساحې ته ننوځي .اسلامي امارت که څه هم داسې شرایطو ته ننوت، چې کمزوري حرکتونه په کې بیخي منحلیږي، خو د اسلامي امارت د مجاهدینو میداني فعالیتونه د دې قوي عامل شو، چې د دښمن پوزه په خاورو خړه کړي .همدلته د عزم عملیاتو ځانګړنه برسېره کیږي او همدلته د «عزم» د نامه تاثیرات څرګندیږي .د

عزم له اعلان سره جهادي فعالیتونه ډېر په تېزۍ پر مخ ولاړل. دښمن ځینې جالونه وغوړول، مګر هیڅ یې ونه شو کړای چې د باعزمه جهادي طوفان مخه ونیسي .څه وخت کوښښ روان و، چې د مذاکراتو په اوازو جهادي روحیه وځپي. څه خلک یې هم ورته پیدا کړل، چې د دوی پر مېز د مجاهدینو استازیتوب وکړي، خو څومره چې اوازې تېزې شوې، هغومره جهادي فعالیتونه پر مخ ولاړل .د خپلې شیطاني پروسې په تعقیب یې د جهادي فعالیتونو د مخنیوي په موخه ډېره ګوابنده پروسه په کار واچوله، خو الحمدلله چې دې پروسې هم هیڅ ونه کړای شول. نه یوازې دا چې د جهاد مخنیوی یې ونه کړای شو، بلکې د تېزۍ مخه یې هم ډپ نه کړه .د امیرالمؤمنین د وفات غږ یې پورته کړ او هوا یې ورکړه. کوښښ یې وکړ، چې مجاهدین سره وویشي او ځنډې ته یې کړي، خو دا چې د جهاد میداني حقیقت بل څه دی، هیڅ اثر یې ونه کړ او لا پر مخ ولاړ. عزم عملیات په سختو شرایطو کې ځان تحمیل کړ. دا چې عزم نوم ځان سره نېک پال او یوه نړۍ اراده لري، هیڅ ډول شرایطو د عزم مخه بنده نه کړای شوه .که پوښتنه وکړو، چې اصل راز څه دی؟ یوازې نوم دومره تاثیر چرته لري، چې جګړه پر مخ بوځي؟ نه یوه کلِمه دومره ارده پنځولی شي، چې د امپراتوریو مخې ته غوښې او هډونه سپر کړي. ځواب ساده او بسیط دی. کله چې د مجاهد اراده وسپنیزه وي. داسې وسپنیزه چې په هر چا د ځان د منلو جوګه وي، نو دغسې د هر خنډ د ختمولو زور درلودای شي .په جهاد کې ځان ته شرایط برابرول تر ټولو مهم کار دی. میداني وضعیت دا مهال دا دی، چې د دښمن روحیه صفر کې ضرب ده او مجاهد په ډېر متانت مقابلې ته وردانګي. دوهمه خبره دا ده، چې مجاهد د خپل کار تر شا څه عوامل او هڅاند فکر ویني، ځکه خو عزم خپلې نېک پالۍ سره سره په ډېرو سختو شرایطو کې پر مخ ولاړ .دلته یوه خبره بله هم ډېره ضرور ده، چې هېواد کې جهادي فکر دومره عمق ته رسېدلی، چې اشخاصو او تنظیمونو پورې هیڅ تړاو نه لري .که دښمن خدای مه کړه د اشخاصو او تنظیمونو په اخیستو هم وتوانیږي، جهاد به ونه دریږي، ځکه چې جهاد نه شي اخیستلای. همدا لامل دی، چې هیڅ سیاسي فشار روان جهاد نه شي پڅولای. سیاسي برخه کې هغه وخت تاثیر پیدا کیږي، چې مجاهدین سیاست ته وزګار شي او د خپل رول د ښکارولو هوس پیدا کړي. دا چې د جګړې میدان تود دی او د جګړې عوامل له منځه نه دي تللي، نو دښمن به هم تر هغې پورې ارامه ساه ونه کاږي، چې د جګړې عوامل پای ته ونه رسیږي.

# حکم شرعی صلح نمودن مجاهدین با حکومت مرتد کابل

نویسنده:مولوی خالد خاکسار

درین روزها رسانه های خبری در مورد صلح نمودن مجاهدین با حکومت مرتد کابل خبرهای رنگارنگی را به نشر می سپارد.

این خبرها اذهان مردم عام و همچنان اذهان یک عده مجاهدین را حیران نموده و سوال های زیادی برای آنها ایجاد نموده است.

بناءً بهتر دانستم تا حکم شرعی این موضوع را بشکل مختصر برای تمام براداران و خواهران مسلمانم به نگارش درآرم تا وسوسه هایی را که رسانه های شیطانی دشمن ایجاد نموده است ازبین برود.

نخست به چند نقطه ای که با موضوع ارتباط دارد و نباید هیچ مسلمانی از آن بی خبر باشد، اشاره میکنم.

**اول**:دشمنی ما با کفار دشمنی عقیدوی و دایمی است.آنها نیزبا ما همینگونه دشمنی دارند الله تعالی می فرماید: {يا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَ عَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ} الممتحنه ترجمه:ای مؤمنان دشمنان من و دشمنان خود را به دوستی نگیرد.

در رابطه با یهود ونصارا که اکثریت اعضای ناتو را تشکیل میدهند، الله تعالی می فرماید:

{يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الْيَهُودَ وَالنَّصَارَىٰ أَوْلِيَاءَ ۘ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ ۚ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ} (51)**المائده**

ترجمه:ای مؤمنان یهودیان و نصارا را دوستان ویا همپیمان نگیرید،برخی از آنها دوست برخی دیگر اند و هرکسی از شما که با آنها دوستی نمود ویا علیه مسلمانان با آنها همپیمان شد،او ازجمله آنها به شمار میرود.الله ج ستمگران را هدایت نمی کند.

**دوم**:کفاری که با ما درجنگ نیستند،میتوانیم با آنها نیکی ها کنیم ،زیرا آنها مخلوق الله تعالی اند.مسلمانان حتی با حیوانات نیکی و ترحم می نمایند،انسانان راکه بگذار.

ولی نباید نیکی وکمک با آنها با محبت نمودن با آنها آمیخته شود باید ازیکسو از آنها نفرت نموده و آنها را دشمن پنداشته،با آنها کینه ورزیم.ازسوی دیگر با آنها نیکی، احسان وکمک نموده،از هرنوع ظلم وستم بالای آنها خود داری نمایم.الله ج می فرماید: {لَا يَنْهَاكُمُ اللَّهُ عَنِ الَّذِينَ لَمْ يُقَاتِلُوكُمْ فِي الدِّينِ وَلَمْ يُخْرِجُوكُم مِّن دِيَارِكُمْ أَن تَبَرُّوهُمْ وَتُقْسِطُوا إِلَيْهِمْ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ} الممتحنه

ترجمه:الله تعالی شمارا از نیکی و احسان نمودن با کفاری که باشما نجنگیده اند و از وطن شما را آواره نساخته اند منع نمی کند،الله تعالی نیکوکاران را دوست دارد.

بنا به آنچه گذشت همانطوری که دشمنی با تمام کفارامر الهی است،نیکی و کمک با یک عده آنها نیز امر الهی است ونباید که نیکی وکمک با آنها باعث فراموش شدن دشمنی و نفرت داشتن از آنها شود.

سوم:نظام اسلامی در تمام آنعده پیمان های ملل متحد وغیر ملل متحد که به نفع بشریت و محیط زیست می باشد باید شرکت نماید بلکه ازهمه در همچو پیمانها باید پیش دستی نماید ،زیرا مسلمانان به همچو پیمان ها سزاوارترند.

رسول الله صلی الله علیه وسلم در کودکی اش در پیمانی که مردم مکه بخاطر کمک مظلومان و گرفتن حق آنها از ظالمان انجام گرفت شرکت ورزیده بود، و بعد از پیغمبری اش به آن فخر می کرد ومیگفت:((شهدت غلاما مع عمومتی حلف المطیبین کما احب ان لی حمرا النعم وأنا أنكثه ))- رواه الامام احمد ورجاله ثقات-

ترجمه: در آیام کودکی ام با کاکاهایم در پیمانی که بزرگان مکه بخاطر یاری نمودن مظلومان دربرابر ظالمان براه انداخته بودند شرکت ورزیده بودم ،نمی خواهم آن پیمان را شکسته ودرمقابل آن به شترهای سرخی دست یابم.

چهارم:هیچ حرکت اسلامی ونظام اسلامی نمی تواند با تمام کفار یا یک دولت کفری برای همیشه و دائمی آتش بس را امضاء کند.

زیرا با این کار جهاد و جزیه گرفتن از کفار که دو حکم الهی وقرآنی است ملغی می شود.

پنجم:آنعده کفاری که درقلمرونظام اسلامی زندگی می نمایند و دربین نیاکان آنها و نظام های اسلامی سابقه پیمان «ذمه»-یعنی: پیمان سکونت نمودن در قلمرو نظام اسلامی در مقابل جزیه پرداختن - امضا شده و هنوز آنرا نشکسته اند.آنها اتباع نظام اسلامی شمرده شده،نظام اسلامی مکلف است که از سرومال وجان آنها مانند سرومال وجان مسلمانها دفاع کند.

ولی آنعده ای اهل ذمه که پیمان خود را شکسته،با کفار علیه مسلمانها در جنگ ودسیسه سازی کمک نموده اند،باید نظام اسلامی در قسمت آنها فیصله مناسبی نماید .آنعده ای که سزاوار کشته شدن اند کشته شوند و عده ای دیگری اخراج شوند ویا جزای مناسب دیگری برای شان داده شود.

ششم:آنعده کفاری که سرزمین های اسلامی را اشغال نموده اند واز مدت زیادی یا کمی در آن جنایت می نمایند مانند:افغانستان فعلی،فلسطین،ترکستان شرقی،اسپانیا،برما وغیره ...

اهل ذمه نیستند بلکه تجاوزگر واشغال گرند.

متأسفانه که یکعده علمای وطن فروش و دین فروش،این تجاوزگران را اهل ذمه خوانده، مجاهدین را از کشتن آنها منع می نمایند.

اهل ذمه در سرزمین مسلمانها بشکل ذلیل زندگی کرده،جزیه میپردازند و تمام شروط نظام اسلامی را قبول می نمایند،اما ناتو وامریکا کفاری اند که بامردم مسلمان افغانستان درجنگ اند،وطن مارا اشغال نموده اند هزاران طفل،سیاه سر،موسفید وجوان مارا به خاک وخون کشانیده اند نظام دیموکراسی کفری را به زوربم افگن ها وتوپ خانه ها برما تحمیل نموده اند.آنها جزیه نمی پردازند،بلکه شب وروز معادن بسیار قیمتی مارا میدزدند.پس به کدام دین وعقل ومنطق این اشغال گران وحشی صفت وظالم را می توانیم اهل ذمه بخوانیم.

قدرت اصلی در وطن ما به دست آنها است،هرکه را که خواهند میکشند،هرجا را که میل داشتند، بمباردمان میکنند حتی محافل عروسی وختم قرآن کریم نیز ازشر آنها در آمان نیست.

بخاطری که یکعده بی خردان را فریب دهند انتخابات را براه انداخته ویکی ازغلامان سگ صفت خود را به اریکه قدرت میرسانند.روی کارشدن این سگ ویا آن سگ برای آنها بی تفاوت است.زیرا هریک تلاش می نماید که بادرش را خورسند سازد.

باروشن ساختن نقاط گذشته زمینه داخل شدن به قلب موضوع انشأالله فراهم شده است.

اکنون بشکل مختصر حکم شرعی آتش بس با امریکا وناتو را خدمت خواننده گان محترم تقدیم میدارم.

با حکومت دست نشانده وبی حیثیت کابل سروکاری نداریم طرف مقابل مجاهدین امریکا وناتو است.حکومت کابل بزورآتش وتفنگ وپول به میان آمده وبزورآتش و دالرویوروکوشش می شود چند روزی به زندگی اش افزوده شود.

اگر حمایه نظامی،اقتصادی وسیاسی کفار ازحکومت کابل قطع شود به یک چشم برهم زدن بزانو در می آید.بناءً احمقان وبی خردان به آن ارزشی قایل اند وگمان میکنند که در مقابل مجاهدین قرار دارد.

تمام فقهای امت اسلامی اتفاق دارند که هرگاه کفار بالای یکی از سرزمین های اسلامی حمله کرده و آنرا مانند افغانستان اشغال نمودند، بالای تمام مردم آن سرزمین جهاد مسلحانه مانند نماز وروزه فرض عین میگردد وهر مسلمانیکه ازجهاد بدون عذر واقعی وشرعی دست بکشد مجرم بزرگ بوده ،گناه بس عظیمی را مرتکب شده است.

مسؤلیت امیر مسلمانها درین حالت این است که تمام مسلمانان را به جهاد فراخوانده وجهادمقدس علیه تجاوزگران را رهبری نموده ازحریم اسلام ومسلمانان دفاع نماید.

اگر امیرمسؤلیت خود را انجام نداد، باید بزرگان مسلمانان اورا برطرف کرده شخص

دیگری را تعین نمایند تا درفش جهاد را به اهتزاز درآورد.

اگرمردم آن سرزمین توان مقابله با کفار را نداشتند ومسلمانهای همجوار آنها ودیگر مسلمانها نیز به کمک آنها نشتافتند ویا شتافتند ولی بقدر کافی نه.

درین صورت امیر مسلمانها میتواند با کفار آتش بس مؤقتی را امضا نماید، زیرا جنگ نمودن از توان مسلمانها بالا بوده و الله تعالی هیچوقت مسلمانها را به کاری امر نمی کند که از توان شان بالا باشد.

الله تعالی می فرماید: { لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا }
ترجمه:الله ج هیچ کسی را به کاری که از توانش بالا باشد مکلف نمی سازد.

ودرجای دیگری می فرماید:{ وَإِن جَنَحُواْ لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا }

ترجمه:اگرکفار به آتش بس میل نمودند تونیز همان کن.

ولی این آتش بس مؤقتی به شرطی جائز است که از آن استفاده شده، مسلمانها شب وروز برای جنگ آمادگی های لازم بگیرند وباتمام شدن تاریخ آتش بس اگرتوانائی لازمی را بدست آورده بودند جهاد کنند و در غیر آن میتوانند آتش بس مؤقتی را تجدید نمایند.

ولی اگر مردم آن سرزمین توان مقابله باکفار را داشتند چنانچه مجاهدین دلیر وسربکف افغانستان به یاری وفضل الله تعالی توان مقابله با ناتو و امریکا را دارند و همه می بینند که الحمدالله بم افگن ها ، توپ و تفنگ بسیار پیشرفته آنها در مقابل ایمان مجاهدین بی چاره شده وطلسم جادویی خود را ازدست داده وحتی به چشم جهانیان حقیر وپست جلوه می نماید.

سربازان دیوانه شده و اعصاب ازدست داده شان شفاخانه ها را پرکرده است،اقتصاد اکثریت اعضای ناتو خصوصا از امریکا به صفر ضرب خورده وکمرش شکشته است.

چهار سال قبل رادیوی بی بی سی اعلان نمود که شهر کلیفورنیای امریکا را بنام شهر خیمه ها یاد می کنند.زیرا فامیلهای زیادی توان کرا گرفتن خانه را نداشته ودرپارک ها وجاهای خالی درزیر خیمه ها زندگی می کنند.فامیلهای زیادی دیگری هریک صرف یک اطاق را در هوتل کرا گرفته، تمام فامیل درهمان یک اطاق زندگی می کنند.

این خبر چهار سال قبل است اکنون حالت از آن بدتر است (الحمدلله رب العلمین)

بنا به آنچه گذشت ازینکه مردم مجاهد پرور افغانستان توان مقابله با ناتو به رهبری امریکا را داشته ودست آورده های چشم گیری نیز باخود دارند وجهاد بسوی کامیابی روان است.آتش بس جائز نیست،زیرا الله تعالی میفرماید: { فَلَا تَهِنُوا وَتَدْعُوا إِلَى السَّلْمِ وَأَنتُمُ الْأَعْلَوْنَ } محمد
یعنی درحالیکه دست شما در جنگ بالا بود سست نشده وسخن از آتش بس نزنید.ادامه جنگ درین حالت امر الهی است، حکمت ها

وفوائد زیادی را باخود دارد .بساط کفر روز بروز چیده شده ،مجاهدین به آرمانهای خود رسیده،نظام اسلامی برپا میشود وجنایت کاران مرتد به سزای اعمال شان میرسند،انتقام شهیدان،بیوه زنان یتمان ومظلومان گرفته می شود(انشأالله).

برای نسلهای آینده سرمشق خوبی بجا گذاشته می شود،الله ج از ما راضی شده دردنیا عزت ودر عقبی انشأالله جنت به ما میدهد،ولی اگر به آتش بس تن دهیم از یکسو از همه این نتائج مبارک جهاد محروم میشویم،از سوی دیگر صف مجاهدین چند پارچه شده امارت ضعیف میگردد،گروهی به ادامه جهاد پافشاری نموده ،گروهی به صلح وگروهی حیران شده نمی داند چه کاری کند.

کفار جرأتمند شده روز به روز قوت میگیرند....

اکنون به یک نقطه بسیار مهم توجه خواننده گان را جلب میکنم و آن اینست که منظور حکومت کابل از صلح آتش بس نیست،بلکه این است که مجاهدین از جهاد دست بکشند،قانون اساسی کفری آنهار قبول کنند،از برپا نموده نظام اسلامی صرف نظر شوند و با آرمان هزاران شهید بیوه ویتیم خیانت کنند تا ابد غلام باشند وغیره...که این کار نه تنها حرام است بلکه کفراست ویکی از نواقض اسلام است،زیراهرکسی که به کفر راضی شود کافر می گردد،نظام دیموکراسی کابل یک نظام کفری است حتی مردم عوام به کفرروشن این نظام پی برده و آنها به چشم سرکفر آنرا مشاهد می نمایند. بطور مثال:همه می بینند که حکومت کابل بی ستری وبی حجابی زنان واختلاط زن ومرد را که حرام قطعی است روا پنداشته،به آن دعوت کرده ،آنرا حمایه می ند بلکه به آن فخر می کند و آنرا عامل ترقی و پیشرفت میپیندارد.

الحمدلله مردم عوام ماميدانند که هر که حرام را حلال بگوید کافر میگردد،پس کسانیکه نه تنها حرام را حلال می گویند بلکه آن را حمایه کرده به آن فخر می کنند وآنرا عامل ترقی میدانند چگونه امکان دارد که مسلمان باشند.

البته این بطور نمونه پیش شد و ده ها دلایل روشن دیگر به کفر نظام کابل دلالت میکند.

الله تعالی تمام مسلمانهای دنیا را یاری دهد تا درمقابل نظام های کفری که در اکثریت سرزمین های مسلمانان حاکم است جهاد مقدس را براه انداخته عزت وکامیابی دنیا وآخرت را بدست آرند.آمین

وصلی الله علی سیدنا محمد واله واصحابه اجمعین

# په شمال کې د دوستم او عطا محمد نور نوې ملیشه یې پروژې



لیکوال: رښتیا افغان

هر چارواکي چې څه کوي او څه سرته رسوي د هغې ښې او ناوړه کړنې تاریخ پخپلو زرینو پاڼو کې د تل لپاره خوندي ساتي او بیا یې وروستي نسلونو ته بیانوي. خلک او ولس پرې قضاوت کوي، یا یې د ابد لپاره محاکمه کوي یا ورته برأت ورکوي.
اوس چې په شمال کې د جنرال دوستم -عطامحمد نور او محقق خاصې ناستې او غونډې روانې دي غواړي چې د اسلامي امارت په ضد د یو لوی تعرضي ملیشې غونډ تشکیل جوړ او د شمال د خلکو د ژغورلو په نوم یې وګماري.
لږ څه وړاندې باید ولاړ شو هغه دا چې په لنډ ډول سره دوستم، نور او محقق وپېژنو.
جنرال دوستم څوک دی او څه ډول سیاسي لوبغاړی شو؟ دوستم د شبرغان اوسېدونکی دی او په تېر کمونیستي رژیم کې د ملیشې د یو ګروپ قوماندان و.
د مسلمانانو په وژلو، زورولو او جنایاتو کې متخصص دی. د بعضو فعلي چارواکو په څېر خبرې هم نه شي کولای، دا چې حرفوي جنایتکار دی، همغلته د قومي ملیشې د یوکنډک قوماندان شو.
په ډېر کم وخت کې یې په شمالي ولایتونو مزارشریف او شبرغان کې د پخواني رژیم د شمال اوسېدونکو له چارواکو سره اړیکې پیدا شوې او د خوست، پکتیا او ننګرهار په جنګونو او د مجاهدینو او عام ولسي وګړو په وژلو او زورولو کې لوی نوم(ازبک قاتل)لقب تر لاسه کړ او ټولو ورته د نفرت په سترګه کتل.
د وخت په تېرېدو سره ازبک جنرال د پرچم د ګوند له لوړ پوړو چارواکو فرید احمد مزدک، نجم الدین کاویاني، د کارمل ورور محمود بریالي او د شمال له ټلوالي جمیعت او احمدشاه مسعود سره د یو لوی سازش په بنیاد یو ځای او خپل موخو ته د رسیدو لپاره یې په کار پیل وکړ.
لومړی اقدام یې دا و چې دی د هغه وخت د مرکزي دولت نه سرغړوونکي شو، د وخت چارواکو ته به یې ارزښت نه ورکاوه او څه چې یې زړه غوښتل هغه به یې سرته رسول.
خلک یې ناحقه وژل، اختطاف خو یې مسلک و، د بچه بازۍ لپاره به یې ښکلي هلکان تښتول او ساتل لنډه دا چې پر هر کار بر لاسي و.
ورو ورو یې ډګرجنرالۍ ته ځان ورساوه او په شمالي سیمه کې یو ستر نظامي ځواک شو.
ده خو خبره پرچمیانو سره مخکې پخه کړې وه او د احمد شاه مسعود سره یې د یو ایتلاف خبره کړې وه چې زه به د شمال ټوله لار د نجیب د دولت پر مخ تړم او ته به په کابل له مونږ سره یو ځای حمله کوې دا ځکه چې د کابل د پخوانۍ اداري غړي مزدک ،کاویاني ،د خارجه چارو وزیر وکیل، بریالي او د مرکزي کمیټې زیاتو غړو دوستم د نظار د شورا له مشر مسعود سره د خبرې پخلي کړي و.
بندیزونه پیل شول، حالات خړ پړ شول او د کابل پر دریو لارو بشپړ بندیز ولګېد .
سیاسي ډرامه ډېره ژرپای ته ورسېده او کابل ته د ثور د اتمې نېټې څخه مخکې د مسعود وسله وال او د دوستم ملیشې راننوتې، ټول نظامي ستراتیژیک او د وسلو لویې او تصور نه لرې ډکې ډیپوګانې تر خپل تسلط لاندې راوستې.
نور څه نه لیکم چې مجاهدین څه ډول کابل ته راننوتل په دې تبصره نه لیکم، خو دومره باید ووایم چې د دوستم د ملېشو داخلیدو سره سم د احمد شاه مسعود ځواکونو هم له دوی وروسته پاتې نه شول، سنګرونه یې کلک جوړ کړل او د ریاست جمهوري نه نیولې بیا تر وزارت خانو پورې ټولې ملي او دولتي شتمني یې لوټ او چپاول کړل.
په دولتي دفترونو کې هیڅ پاتې نه شول او ورو یو په بل پسې د واک د غځېدو په خاطر نظامي تعرضونه پیل کړل کابل کې د جنګ اور پیل شو.
ازبک لنډغر مسعود سره هم د واک د وېش پر سر ورانه راغله او په اتوماتیک ډول یې د حزب اسلامي مشر ګلبدین حکمتیار سره د دوستۍ او وروری ژغ پورته شو او نظامي اتحاد یې وکړ. د مسعود او رباني پر ضد یو ځای شول خو زه څه نه وایم دومره لیکم چې حکمتیار صاحب ولې دومره لویه تاریخي اشتباه باندې

مرتکب شو خو په هر صورت دوی به یې ملت ته ځواب لري مونږ په کې هیڅ نه شو ویلای او لیکلای.
د مهاجرت لړۍ شروع شوه، ورسره سم د کورونو لوټ کېدل هم شروع شول.
څه د پاسه څلور کاله په کابل جنګ و څه د پاڅه اویا زره ۷۰۰۰۰ څخه زیات بې ګناه کابلیان په شهادت ورسېدل. ښځې کونډې، کوچنیان بې پلاره او بې موره او د ټولو عزت لوټ او له مینځه لاړ. ټول کابل خاورو سره خاورې شو.
هرې جنګي ډلې به کوشش کاوه، چې زیات ځایونه تر خپلې ولکې لاندې کړي، خو جنګ دومره شدت پیدا کړ چې دا لړۍ ولایاتو ته هم وغځېده. په کابل او نورو ولایاتو کې چې څه شوي د دې ټولو بدبختیو سرچینه دوستم، محقق مسعود، رباني، سیاف، خلیلي، عطا او او نورې جنګي ډلې دخیلې دي.
اوس چې دا لیکنه کوم د کابل ولایت هغه جنګي صحنې مې را په زړه شولې او باور په الله ج وکړئ چې ژړا راځي. د دوستم د ملیشو کوم ظلم او وحشت چې رایادېږي د سترګو مې بې اختیاره اوښکې راشي.
له دې ظلمونو اا و وحشتونو نه نور ولس تنګ شو او یو ځل بیا یې د الله ج لورې ته په سجده او زارۍ شروع وکړه او دا دعا به یې کوله چې یا الله ج د دې فاجرو، ظالمو او فاسقینو نه موږ ته نجات راکړې! الله ج به یې سوال په خپل دربار کې البتهً قبول ګرځولی و، چې ناڅاپه مو په راډیو کې واورېدل ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله د دیني مدرسې له څو تنو طالبانو او عالمانو سره د شر او فساد د ایجادونکو پر ضد راپاڅېدلی او تصفیه یې له قندهاره پیل کړې. لومړني عملیات یې په ډېره بریالۍ توګه سرته ورسول. ټول کندهار یې د فاسقو بچه بازانو -غلو او داړه مارانو څخه پاک او صفا کړل.
دا ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله و، چې ټول هېوادوال یې شخصیت نه پوره اګاهي لري. په ډېر کم وخت کې یې ټول افغانستان د مفسدینو له منګلو څخه آزاد کړو.
د رباني د فاسدې ادارې ټول جنګیالي خپلو بادارانو امریکې، روس، انګلستان، تاجکستان، ایران، ازبکستان، ترکیې او نورو هېوادو ته د پناه په نوم ولاړل او مېشت شول.
د اسلامي امارت اتلو مجاهدینو او علماء کرامو د امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله د پاکې او سپېڅلې مشرۍ او رهبرۍ لاندې په هېواد کې کار پیل کړ.
امارت اسلامي خپلې چارې د صفر څخه د دولت او حکومت په جوړونه پیل کړه.
هر څه یې له سره ورغول. لومړی یې د اقتصاد د بیا جوړونې او رغولو تر څنګ حربي او نظامي مسایلو ته پاملرنه وکړه، ځکه چې له اسلامي امارت سره هیڅا د هیڅ شي مرسته نه وه کړې او نه به یې کوله. ټول کارونه یې د الله ج په مرسته او د مجاهدینو په بشپړ ملاتړ سره سرته رسول. د ملت ټولو وګړو د ارام او سکون ساه تنفس کوله، سوله یې ولیدله، هر طرف خوشحالي او سکون و.
که د ټولنې هر فرد هر وخت کې غوښتل چې د هېواد هر ګوټ ته سفر وکړي بې له کوم وېرې(ډار)په اسانۍ او ارامۍ سره کولای شول چې ولاړ شي.
په زړونو کې مو یو ډول سکون راغی او روحاً ارام شوو، چې دا د هیواد د هر وګړي لپاره هسې د خوب لیدل او خیالي تصور و.
بیا هم کفارو او د دوی حامیانو د اسلامي امارت نظام بې ارام پرې نه ښود او په مسلمانانو یې ونه لورېده، دا ځکه دوی تل د اسلامي شرعي قانون نافذ کېدو لپاره بې شمېره قربانۍ ورکړې، د پردو د تسلط څخې ازاده واکمني غوښته چې دا د کفارو د ستراتیژیکو برنامو سره په ټکر کې وه.
امریکې د اسلامي امارت ته وړاندیزونه وکړل چې دا وړاندیزونه د اسلامي امارت مشر تابه امیر المؤمنین رحمه الله به یې ومنې، خو د امیرالمؤمنین ملا محمد مجاهد رحمه الله لخوا ورته غاښ ماتوونکي ځوابونه ورکړل شو او هیڅ یې پرې پروا هم ونه ساتله، چې تاسو ټولو د راډیویي مرکې د بي بي سي ،امریکا ژغ، ازادي راډیو او نورو سره مرکې به مو په دقت سره اورېدلې چې تفسیر ته یې حاجت نه شته.
امریکا خو د نړۍ سوپر طاقت ځان شمیرې او د هغوی خبره ټولو لپاره د کاڼي کرښه ده دلته یې سوچ وکړ چې اسلامي امارت به د نړۍ کفري هیوادو لپاره درد سر جوړ شي، خو ښه به دا وي چې د خپلو داخلي او بهرني دښمنانو او مخالفینو په واسطه یې له واکه ګوښه کړو.
یو نړیوال لوی کفري ایتلاف یې جوړ کړ او د اسلامي امارت له یاغي ډلو سره یې هم سمدستي لیده کاته پیل کړل او شمالي ټلوالې ته یې د ډالرو بې شمېره بورۍ په الوتکو کې له ځان سره د امریکې خاص استازي را انتقال او همدا شان پرېماني وسلې یې راوړې. سمدلاسه یې پر مخالفینو ووېشلې د B52 په مرسته د جبهې په لومړي خط د اسلامي امارت په بې وزلو طالبانو یې بمبارۍ پیل کړه، په شمال کې د دوی غلامان او لاسپوڅۍ عطامحمد نور دوستم ،محقق ،رباني ،سیاف او داسې نورو له خپلو طرفدرانو سره د طالبانو په ضد عملیات پیل کړل. بې شمېره ډالر او وسلې هم په اختیار کې واخیستې او د اسمان نه

يې د شديدو بمباريو تر بريد لاندې او زمکې خوا څخه لومړی د داخلي نوکرانو او بيا وروسته د امريکې، ناټو او د ۴۸اروپايي هيوادو په ګډون ګڼ او درانه عمليات د امارت اسلامي په ضد پيل شول.

په شمال کې د فاسد دوستم او غل عطا محمد نور لخوا د طالبانو په ضد د چانيز عملياتو په نوم هم عمليات تر سره شول، په زرګونه طالبان يې اسيران کړل او په شمال کې يې لومړی په زندانونوکې واچول او بيا يې په کانتينرونو کې ايسار او ژوندي يې وسوزول، چې دا کار او عمل د ټولو اسلامي، انساني او نړيوالو ميثاقونو خلاف عمل دی.

.هر هغه څوک چې اسير ونيسي او بيا يې بندي کړي د وژلو، زورولو او ځکولو حق پرې نه لري که څوک دا عمل وکړي د نړۍ د جنګي جناياتو د پلټنې لخوا د جنګي جناياتو په تور ليست کې داخليږي.

اوس نړۍ ړاله محکمه چيرې او څه شوه چې د جنرال دوستم، همايون پوځي ،عطامحمد نور او.هزاره مشر محقق سره ددې حساب کتاب وکړي او د نړۍ عدالتي ميز ته يې راکش کاندي؟ خو راځم اصلي مطلب ته هغه دا چې: ولې ازبک جنرال د بلخ فعلي والي عطا محمد نور او محقق په شمال کي د طالبانو په ضد منسجم او د نظامي مليشو د غونډونو تشکيلات جوړوي او اوس په شمال کې درې واړه د همدې کار تر سره کولو لپاره پراته او بوخت دي؟ ددوی اجيره او مزدوره مليشه هره ورځ د لسګونو پښتنو کورونه لوټوي، مشران او پيژندل شوي اشخاص او مخور به يې کله به يې د طالب او مخالف په پلمه او کله يې د قومي تعصباتو په پلمه له کوره وباسي او وژني يې، له کورنيو څخه يې د بچيانو د ديني زده کړو پوښتنه کوي. که څوک ديني مدرسه وايي پرې يې راغواړي او که په ټاکل شوي وخت سره حاضر نه شو بيا نو کور يې سوزوي او له کلي يې شړي.

لنډه دا چې په شمال کې چې کوم ظلمونه او تيرى عطامحمد نور، دوستم او محقق پيل کړی د اسلامي نړۍ په تاريخ کې ساری نه لري. د دې درې واړو مخکني تاريخ ولولئ او بيا پرې سوچ او قضاوت وکړې چې دا ډول مفسدين، قاتلين لنډغر چې د اسلامي امارت د طالبانو له لاسه څو وارې له ډيرې وارخطايۍ د ځان جامې او د پښو څپلۍ ترې په کور کې له وېرې پاتې شوې وې د ايمان ګوزار ته به ټينګ شي؟ هيڅوخت نه. دوی به له خيره بيا همداسې منډې وهي چې د چا پکول پاتې، د چا د کور ماشومان پاتې، د چا د لاس وسله پښې ابله او د ليونيانو پشان ډاګونو او ځنګلونو خوا ته تښتي. مار خوړلي له پړي هم ډاريږي.

الحمد الله د اسلامي امارت ټول نظامي تشکيل د هيواد په ټولو ولاياتو کې فعال دی او د هرې ورځې په تيرېدو سره د دولت پوځيان او ملکي کارکوونکي د دولت له صفوفو جلا او د اسلامي امارت له ليکو سره يو ځای کيږي. امريکايي نظامي کارپوهان وايي چې هره مياشت له څلورو زرو نه زيات ۴۰۰۰ د دولت نظامي او ملکي منسوبين له دندو لاس په سر کيږي او د اسلامي امارت له ليکو سره يو ځاي کيږي، چې دا د اسلامي امارت له مجاهدينو سره د مجاهد ملت د مينې او يووالي ښکارندويي کوي.

د مرتد حکومت مشران او نظامي چارواکي په دې سوچ او اندېښنه کې دي چې ورځ تر بلې د دوی له لاسه دولتي ساحه وځي دوی او آمريکايان د ډېر زيات تشويش سره مخامخ دي، داسې نه چې د تېر په څېر بيا نا ببره طالبان مينځ ته رانه شي. په دې ترتيب سره اوس دوی غواړي چې د خپل نفوس او واک ساحه پراخه کړي
.

ددې لپاره خو دولت هيڅ بوديجه او وسلې نلري دوی د دومره مليشو د جوړولو د وسلو او پيسو امکان له کوم ځايه کړ؟ عطامحمد نور د روسيې، تاجيکستان، ازبکستان او ايران سره ښه او نبک روابط لري ان دا چې ډير قراردادونه د شمال په ارتباط له ټولو اړخونو سره خپله تر سره کوي دوستم هم له دې مداريتوبه خالي نه دی، ځکه ازبکان يو په بل سر ورکوي.

ازبکستان او ترکيه خو د دوستم سکني دي ځکه چې ژبني او قومي روابط يې ټينګ دي، نو دا ګاونډيان د دې وېره لري چې د اسلامي امارت له نظامي پراختيا سره سم په ذکر شوو هېوادو کېږي حالات خړ پړ نه شي خو ښه به دا وي چې د دې لاسپوڅو په وجود کې دا جنګ يوازې د شمال تر سرحداتو وساتي او د سرحدونو اخوا وانه وړي، ځکه چې د اسلامي امار ت په ليکو کې ازبک، تاجيک، ترکمن، چيچنيايي او عربي مجاهدين شته، نو دوی دا اټکل کوي چې د شمال د جنګ لړۍ بايد په شمال کي متوقف او ودريږي. درګرده لګيا او بوخت دي مليشې نظامي ځواکونه رامينځته کوي او د طالبانو د موجوديت پاکولو په نوم بې شمېره او وسلې لاسته راوړي تر څو خپل نظامي قوت په شمال او.مرکز کې دايم د خپلو او د پردو د ګټو د خونديتوب لپاره وساتي، ځکه دا کار يوازې د همدغو لاسپوڅو او پردوپالو په وجود کې ممکن دی نه د غيرتي پښتون او مسلمان.



# عربي جنګونه او د امریکا پالیسي او موخې

لیکوال: عبدالله مجاهد

په دې کې هیڅ شک نشته، چې د امریکا پالیسي همغه فرعوني پالیسي ده لکه چې الله تعالی ورته اشاره کړې ( إنّ فرعون علا في الأرض وجعل أهلها شيعا يستضعف طائفة منهم يذبح أبناءهم ويستحيي نساءهم إنه كان من المفسدين )سورة القصص۳ .

دا حقیقت دی، چې د قومونو تر منځ د تفرق او اختلافاتو را پیدا کول، په اصل کې د ځان لپاره د خلکو او قومونو تسخیرول دي، کله چې کوم قوم د حق او اتحاد په یوه رسۍ منګولې ټینګې کړې وي هغه قوم هیڅکله او په هیڅ صورت د بل چا نه ښکار کېږي. د امریکا ټولې مرستې او راکړه ورکړه د همدغې پالیسۍ پر بنا تر سره کېږي او هېڅکله د یو قوم او دولت تر شا نه ودرېږي تر څو چې هلته د دوی خپلې موخې وجود ونه لري. نن ورځ چې امریکا په نړۍ کې خصوصا په عربي هېوادونو کې د وسلو کوم بازار ګرم کړی هغه هم د خپلو موخو د خوندي توب په خاطر دی، نه د کوم دولت د امنیت په خاطر. په عربي نړۍ کې د جنګونو او مرګونو لړۍ امریکا ځکه ګرمه ساتلې، چې له یوې خوا یې وسلې خرڅیږي او له بلې خوا یې عربي هېوادونه ځان ته محتاج او اړ ساتلي او هر څه چې ورته وایي بې له شکه یې پلي کوي، هغه که د کوم مسلمان مجاهد نیول وي او که د کوم مجاهد ګروپ ترور کول وي، بلکې هر هغه بااحساسه خلک، چې د امریکا شیطاني او طاغوتي پالیسي یې درک کړې او خلک له دغې مړ مار خبروي، په اسانه یې ښکار کوي، ځکه چې امریکا نه غواړي دغسې خلک د دوی د موخو د لاسته راوړلو په منځ کې خنډ جوړ شي.

مصر ته یې د خپلو وسلو د کارخانو خولې ځکه خلاصې کړې، (اپاچي) څرخۍ الوتکې او (F16 )نوې جیټ الوتکې د دې لپاره ورکړې، چې مصر د اخوان المسلمین ګوند وځپي، امریکا او نورو غربي هېوادونو دا درک کړې، چې دغه ګوند د دوی د موخو د لاسته راوړلو په منځ کې لوی خنډ دی او داسې خلک لري، چې امریکایي ډرامه او شیطانت یې درک کړی. د (اپاچي) څرخۍ پسې د امریکا د پاکستان په څېر د نږدې ملګري او همکار سترګې راووتی او څو څو ځله یې له امریکا څخه د اخیستلو غوښتنه کړې، خو مصر ته یې په پوره اخلاص او صداقت ورکړې، ځکه چې هلته له پاکستانه د دوی موخې ډېرې ژورې او دوام داره دي. په سوریه کې د یوې ډلې پر خلاف یې ټوله دنیا له ځان سره یوځای کړې او په همدغه دولت کې د بلې ډلې سره کومک کوي، وسلې او پیسې ورکوي، دا ځکه چې د دوی جنګ او کومکونه د خپلو موخو لپاره دي او د کومې ډلې او دولت غم نه دي وړي. په سوریه کې اسلامي دولت ډله هم د بشار الاسد د رژیم پر ضد جنګیږي او (معارضة السورية) ډله هم د دغه رژیم د ړنګولو لپاره وسله را پورته کړې، مګر امریکا د اسلامي دولت پر خلاف میلونونه ډالر مصرفوي، ټوله نړۍ یې له ځانه سره راوستې او هره ورځ د دوی پر مرکزونو بمباري کوي، خو د (معارضة السورية) ډلې پوره ملاتړ کوي، د هغوی روزونه کوي، لکونه ډالر ورباندې مصرفوي او له هوا او ځمکې ورته وسلې ورکوي، دا ځکه چې دوی یوازې د خپلو اخیستل شوو او د دوی په لاس د روزل شوو ملاتړ کوي، دوی په دې پوهېږي، چې دا خلک موږ ته کار کوي او زموږ سره زموږ د اهدافو او موخو په لاسته راوړلو کې مرسته کوي او په سخته کې مو لاس نیوی کوي. سعودي عربستان یې د یمن په اړه دومره ډاډه کړو، چې بغیر د سلا او مشورې یې په یمن کې د حوثي ملیشو پر ضد عملیات شروع کړل.

څه وخت مخکې د پاکستان د پوځ مشر (راحیل شریف) سعودي عربستان ته په سفر تللی وو، هلته یې اولنۍ خبره دا وکړه، چې د جنګ اعلان او شروع د ښه پلان ګزارۍ او تکتیک سره نه ده شوې. کله چې سعودي په یمن کې پوځي عملیات شروع کړل، اولنۍ

دولت چې سینه یې ورته وړبوله امریکا وه، امریکا اعلان وکړ، چې موږ به د سعودي سره هر ډول استخباراتي او پوځي مرستې کوو، خو په حقیقت کې د امریکا مقصد د وسلو خرڅول وه، نه مرستې او کومکونه. نن ورځ سعودي عربستان د خپلو حدودو د خوندي ساتلو لپاره له امریکا څخه د خپلې دفاع لپاره د نوي دفاعي سیستم غوښتنه کوي، دغه سیستم د باتورت (Patriot missiles) په نوم یادیږي، ټاکل شوې چې امریکا به دغه سیستم د ۵،۴ میلیارده امریکایي ډالرو په قیمت سره سعودي ته ورکړي (مرسته به ورسره وکړي!!!). له دغه لوی رقم څخه چې د روسیې د وسلو د کارخانو مشران خبر شول، نو په ډېره مینه یې سعودي عربستان ته د خپل (اسکندر دفاعي سیستم) وړاندیز وکړ.

په عراق او لبنان کې هم امریکایي سیاستوالو همدا ډول فضا رامنځ ته کړې او امریکایي وسلو ته یې د یو ګرم بازار زمینه برابره کړې. ترکیه چې په دې وروستیو کې په خپلو پښو ولاړه وه، په اقتصادي او عسکري ډګر کې یې هیڅا ته ضرورت نه درلود، امریکا د اسلامي دولت پر خلاف په جنګ کې ښکیل کړه، چې له امله یې ډېرې بې امنۍ منځ ته راپېدا شوې، څو ورځې مخکې په سارک نومې ځای کې د ترکیې او سوریې پر پوله د کردانو په یوه غونډه چاودنه وشوه او له امله یې ګڼ شمیر خلک مړه او ټپیان شول، همدا ډول په تیره هفته کې په مختلفو ځایونو کې تر لسو شاوخوا ترکي پوځیان وژل شوي. لرې نه ده چې د نن ورځې ترکیه چې د نړۍ لسم نمبر تیز اقتصادي ملک دی د دغه جنګونو له امله بیرته په اقتصاد ډګر کې ښکته پریوزي او یو ځل به بیا امریکایي ډالرو ته محتاجه شي. تېره اونۍ د امریکا وزیر خارجه (جان کیري) د عربي هېوادنو یوې غونډې ته په وینا کې وویل، چې امریکا به په خلیج او عربي هېوادنو کې د وسلو بازار همداسې ګرم او جاري وساتي. جان کیري دغې غونډې ته د احسان په توګه وویل، چې امریکا به څینې داسې وسلې، چې مخکې یې نه غوښتل عربي هېوادونو ته یې ورکړي، نن ورځ دې ته تیاره ده، چې د خپلو عربي ملګرو هېوادنو د تامین او ساتنې په خاطر یې ورکړي. امریکا د خپل بازار او ګټو د لاسته راوړلو سره سره کوښښ کوي، چې په خلکو احسان ورواړوي او د دولتونو تر منځ ځان د یو خواخوږي په توګه وښیي.

په عراق، افغانستان، سوریه او نورو دولتونو کې یې زرګونه بې ګناه خلک او معصوم ماشومان شهیدان کړل او شهیدانوي یې، خو سره د دې بیا هم د بشري حقوقو چغې وهې او د دې لپاره بیا څینې په پیسو اخستل شوي خلک، رسنۍ او تنظیمونه د لاوډ سپیکر په توګه استعمالوي، د ملګرو ملتونو د بشري حقوقو څانګه، (USAID)او دې ورته ادارې د همدې موخو لپاره جوړې شوي، کنه په امریکا کې په میلونونه خلک بې کاره او په فقر کې شپې تېروي، ولې امریکا زموږ دومره خواخوږې ده، چې خپل ولس یې پرېښې او زموږ مرستې ته یې بډې را وهلي. په عربي نړۍ کې د امریکا د پالیسۍ بدرنګه څېره ورځ په ورځ په راښکار کېدو ده، څو ورځې مخکې د امریکا د پوځ عمومي مشر (ریمنډ اودیرنو) خبریالونو ته په ډاګه وویل، چې عراق باید په دوه تقسیمه شي، ځکه چې په عراق کې مذهبي اختلاف وجود لري او شیعه ډله هېڅکله نه غواړي د سنیانو حکومت ومني، همداسې سنیان دا نه شي زغملی، چې شیعه دې د دوی مشري وکړي، نو د دې لپاره باید عراق په دوه برخو وویشل، چې په یوه برخه یې سنیان حکومت وکړي او بله خوا یې شیعه ګانو ته ورکړل شي.

اوس سوال دا دی، چې دغه سنیان او شیعه مخکې په عراق کې نه اوسېدل؟ ایا همدغه شیعه ګانو او سنیانو په لسګونه او سلګونه کلونو ګډ حکومت او ګډه اداره نه وه جوړه کړې؟ ایا همدغه سنیان او شیعه ګان د هر خارجي دولت پر خلاف سره یو موټی شوي نه وه؟ ایا همدغه شیعه ګانو او سنیانو یوځای د اسرائیلو پر ضد جهاد ته متې نه وی را بډ وهلې؟ ځکه خو هر بااحساسه مسلمان دا درک کولی شي، چې دغه د امریکایې پالیسۍ یوه بدرنګه څېره ده او نه غواړي، چې مسلمان سره یوځای شي او یو متحد قوت او پراخه دولت ولري، ځکه چې په دغه حالت کې دوی نشي کولای خپلو موخو او اهدافو ته ځان ورسوي او د دې بر عکس به دوی د تقسیم په صورت کې دغه قوت له منځه یوسي او دواړه ډلې به ځان ته اړ او محتاجه کړي.

# مظلومیت مسلمانان برما و خاموشی جهانیان



انجینر حمزه

طوریکه می دانیم ازچندی قبل ازطرف بودایی های وحشی بالای مردم مظلوم برما ظلم و وحشت شروع و تاهنوز نیز جریان دارد.

قبل ازینکه به بحث شروع کنم ،لازم می بینم که درباره تاریخ قبل و شناسائی برما چند نکته بنویسم.

**موقیعت جغرافیایی میانمار(برما):**

میانمار Myanmarکشوری است در آسیای جنوب شرقی. میانمار از شمال شرقی با چین، از شرق با لائوس، از جنوب شرقی با تایلند، از غرب با بنگله دیش و از شمال غربی با هند سرحد مشترک دارد و از جنوب غربی با خلیج بنگال و از جنوب به دریای آندامان محصور است. میانمار با مساحت ۶۷۸۵۰۰ کیلومتر مربع دومین کشور بزرگ آسیای جنوب شرقی است. این کشور ۱۹۰۰ کیلومتر سرحد آبی دارد. در سال ۱۸۲۴ برما Burma توسط بریتانیا اشغال و ضمیمه حکومت هند، مستعمره بریتانیا شد.

در سال ۱۹۳۷ بریتانیا برما را همراه منطقه «آراکان» (Arakan) که اکنون به آن راخین Rakhine نیز می‌گویند، مستعمره‌ای جدا از حکومت هند خواند و آن را برما بریتانیا نام نهاد. تا آنکه در سال ۱۹۴۸ بریتانیا اجازه داد تا برما استقلال یابد و از آن زمان به «میانمار» تغییر نام یافت. میانمار طبق آخرین آمار بدست آمده از جمعیتی بالغ بر ۵۵ میلیون نفر برخوردار است. ۷۰ در صد میانمار بودایی هستند. در سال ۱۹۸۲ در آن قانون حقوق شهروندی به تصویب رسید که به واسطه این قانون از میان ۱۴۴ اقلیت موجود در میانمار ۱۳۵ اقلیت حق شهروندی دریافت کردند و ۹ دسته از اقوام اقلیت از حق شهروندی محروم شدند که بزرگ ترین این اقلیتها، قوم روهینگیا Rohingyaاست. روهینگیا ۴٪ جمعیت میانمار را تشکیل می‌دهند و بیشتر در ایالت راخین در سواحل غربی میانمار ساکن هستند. آمار رسمی جمعیت روهینگیا ۶ میلیون نفر است اما طبق آمار غیر رسمی جمعیت این قوم که صد در صد آن‌ها مسلمان هستند به ۸ میلیون نفر می‌رسد.

**ورود اسلام به میانمار(برما):**

تاریخ گسترش اسلام در میانمار به قرن اول هجری برمی گردد.بعد از ظهور اسلام و گرایش عرب به اسلام، دریانوردان عرب مسافرت‌های دریایی خود را انجام می دادند و در مسیر سفر خود همچنین دست به تبلیغ و دعوت مردم به اسلام می زدند. بعدها تاجران مسلمان از مسیرهای زمینی که از منطقه غربی میانمار و ایالت آراکان این کشور می‌گذشت به مناطق غربی چین سفرمی‌کردند. بسیاری از این افراد در منطقه حاصل خیز و مستعد ساحلی آراکان، اقامت کردند و اولین مناطق مسلمان نشین را ایجاد کردند. تاجران چینی در نوشته‌های خود از مناطق عرب نشین در مرزهای بین میانمار و یونن (ایالتی در جنوب غربی چین) در قرن‌سوم میلادی یاد کرده‌اند. امروز در حدود ۸ میلیون در میانمار هستند و یک زبان محلی به نام روهینگیا دارند که در واقع مسلمانان میانمار را امروز به همین نام می‌شناسند و این زبان هم ترکیبی از عربی، فارسی و ترکی است که نشان دهندهٔ این است که اسلام از منطقهٔ آسیای غربی به آن منطقه رفته است.

**چگونگی آغازفاجعه حاضرد ر میانمار(برما):**

موج جدید درگیری‌های میان آن‌ها از چند ماه قبل به بهانه کشته شدن یک زن بدست مسلمانان آغاز شده است. ابتدا در ماه می ۲۰۱۲ (۱۱ ثور تا ۱۱ جوزا ۱۳۹۱) ۱۱ مسلمان بی‌گناه به دست نظامیان کشته می شوند. پس از آن خبری منتشر می‌شود مبنی بر اینکه یک زن بودایی مورد هتک حرمت سه مرد مسلمان قرار می‌گیرد و کشته می‌شود. این سه مرد دستگیر می‌شوند و یک نفر از آن‌ها در زندان نظامیان می‌میرد و دو نفر دیگر اعدام می‌شوند.

در ماه جون (۱۱ جوزا تا ۱۱ سرطان) یک سرویس حامل مسلمانان (که از عمره برگشته بودند) مورد حمله بودائیان قرار می‌گیرد. این بار یک بودایی می میرد. متعاقب آن شبه نظامیان تندروی بودایی که «ماگ» خوانده می‌شوند، به مناطق مسلمان نشین در استان راخین حمله می‌برند و بیش از ۲۰ قریه و حدود ۲۰۰۰ واحد مسکونی را به آتش می‌کشند.

روز دهم جون (۲۱ جوزا) آقای «تین سین Thein Sein» رئیس جمهور میانمار در استان راخین وضعیت فوق العاده اعلام می‌کند. حملات بودائیان تندرو به مسلمانان از این پس تحت حمایت ارتش آغاز می‌شود؛ ۱۰۰۰ نفر از مسلمانان بی‌گناه کشته، ۵۰۰ نفر زخمی و ۳۰۰ نفر ربوده شدند. این کشتار ادامه دارد. ولی از آنجا که دولت به هیچ خبرنگاری اجازه حضور در منطقه راخین را نمی‌دهد، کسی از ابعاد فاجعه باخبر نیست. البته تصاویری که در اینترنت قرار گرفته است،

صحنه‌های دلخراشی را روایت می‌کنند. کشتار فجیع زنان و کودکان خردسال و یا نمایش صدها جسد سوخته شده در محوطه یک مدرسه از جمله این صحنه‌ها و تصاویر است.
دولت میانمار برای رفع اختلافات و مشکلات میان مسلمانان و بوداییان، سیاست کوچ اجباری کل ۶ میلیون مسلمان روهینگیایی را از منطقه آرکان اتخاذ کرده است. به واسطه این سیاست اتخاذ شده از جانب دولت قریب به ۱۵۰ هزار نفر از مسلمانان آرکان به بنگله دیش، ۵۰ هزار نفر به تایلند و ۴۰ هزار نفر به مالزی و تعداد قابل توجهی به دیگر کشورهای آسیایی مهاجرت کردند. در آخرین اظهار نظر رییس جمهوری میانمار بیان شده است که ۸۰۰ هزار نفر از این قوم را باید از میانمار اخراج کرد تا تنش‌ها پایان یابد.

**تاریخ شروع وحشت در برما و ادامه آن تا امروز:**

مسلمانان برما تقریبا تا سال ۱۷۷۴با دولت برما مشکلی نداشتند.وقتی یک شحص به نام بوداپایا به قدرت رسید با مسلمانان بنای نازگاری را شروع کرد و قوانین اسلامی را لغو اعلان کرد.از آن روز به بعد بین مسلمانان برما و دولت اختلافات شروع شد.ازآن روز است که حقوق مسلمانان نادیده گرفته می شود.

از آن روز به بعد تبعیض ها بین مسلمانان برما و دولت برما زیاد شد تااینکه امروز این مسئله یک مسئله بین المللی گشته است.

وبعد ازین روز ظلم ووحشت بالای مردم مظلوم برما شروع شد و تا امروز نیز آمده دارد. در این مدت تعدادی از مسلمانان گروه‌های چریکی تشکیل دادند و مبارزاتی هم داشتند و برخی برای اینکه از این وضعیت رها بشوند، به کشورهای هند و بنگلادش مهاجرت کردند و در آنجا زندگی می‌کنند.

ارتش ظالم میانمار، روهینگیا را در ۱۹ عملیات نظامی از سال ۱۹۶۲ تاکنون مورد هدف قرار داده است. درجریان عملیات ناساکا، رفتار غیر انسانی با جمعیت روهینگیا داشته و مردم آن را قتل عام و شکنجه می‌کند. درسال ۱۹۷۸ در عملیاتی به نام ناگامین (شاه اژدها) حدود ۲۰۰ هزار نفر به بنگلادش فرار کردند. دولت در سال ۱۹۸۲ تابعیت مسلمانان را لغو کرد و آن‌ها را تحت فشار قرار داد به طوری که تا سال ۱۹۹۲ حدود ۳۰۰ هزار مسلمان مجبور به مهاجرت از کشور و فرار به بنگلادش شدند و اکثراً اعدام، دستگیر و یا مورد تجاوز واقع شدند. بارها مسلمانان به بنگلادش و تایلند فرار کرده‌اند ولی در ساحل این دو کشور اجازه ورود نداشته و کشتی آن‌ها غرق شده. در سال ۲۰۰۸ گردباد «نارجیز» میانمار را درنوردید. دولت نیز با ممانعت از رسیدن کمک‌های بین المللی به اقلیت‌های غیربودایی (مسلمانان و مسیحی‌ها) مرگ شمار زیادی از آن‌ها را رقم زد.

بعضی شروط ظالمانه که از طرف حکومت میانمار بالای مسلمان های مظلوم برما(میانمار)وضع شده و جامعه ملل نیزآن را اعلام کرده است قرار ذیل است:

1- رژیم میانمار از صدور کارت هویت برای مسلمانان امتناع می‌کند و به همین خاطر این مردم نمی‌توانند در داخل کشور گشت وگذار کنند. علاوه بر آن، دولت برای مسلمانان گذرنامه صادر نمی‌کند و لذا آن‌ها از مسافرت‌های خارجی محروم هستند؛

2- دولت میانمار به مسلمانان روهینگیا اجازه سفرنمی دهد و اگر آن‌ها بخواهند از یک روستا به روستای دیگر بروند باید مبلغی را به عنوان مالیات به دولت بپردازند.

3- تحصیل در دانشگاه‌ها برای مسلمانان ممنوع است.

4- مسلمانان نمی‌توانند در ادارات دولتی استخدام شوند.

5- مسلمانان بدون کسب مجوز نمی‌توانند ازدواج کنند و برای گرفتن این مجوز هم باید مالیات بدهند و پس از ازدواج نیز نمی‌توانند بیش از دو فرزند داشته باشند.

6- بالغ بر ۴۰ هزار نفر از کودکان روهینگیا در غرب میانمار به این خاطر از هرگونه تحصیل و سفر و... محروم هستند که والدین مسلمان آن‌ها بدون اجازه دولت ازدواج کرده‌اند و خودشان جزو فرزندان سوم و یا چهارم هستند. این کودکان شناسنامه ندارند.

7- خانواده‌های مسلمانان میانمار مجبور هستند تا در هر سال یک عکس خانوادگی را که شامل تمامی اعضای خانواده آن‌ها باشد به دولت تحویل بدهند و در صورتی که نوزاد جدیدی در خانواده آن‌ها متولد شده و یا یکی از اعضای خانواده آن‌ها درگذشته باشد باید مبلغی را به عنوان مالیات به دولت بپردازند.

8- آن‌ها اغلب برای بیگاری (کار اجباری) برده می‌شوند.

9- خدمات عمومی مثل خدمات طبی و تعلیم وغیره از مسلمانان روهینگیا دریغ می‌شود و بی‌سوادی در میان آن‌ها تا ۸۰ درصد است و در واقع، هیچ نهادی وجود ندارد که به مثابه دولت آن‌ها را سرپرستی نماید.

10- این مسلمانان حق مالکیت بر زمین را نیز ندارند. این آزارها و شرایط ضدانسانی بسیاری از بومیان روهینگیا را وادار می‌کند که از زادگاه خود به سمت کشورهای بیگانه مثل بنگلادش، تایلند و مالزی بگریزند، اما اغلب جان خود را از دست می‌دهند و یا به جای اول بازگردانده می‌شوند.

11- مسلمانان روهینگیا اجازه تعمیر و نوسازی مساجد و یا مدارس خود را بدون مجوز دولت ندارند و هر کسی که اقدام به نوسازی این بناها کند زندانی می‌شود و از همین رو به مدت ۲۰ سال است که در این منطقه مسجد و یا مدرسه جدیدی ساخته نشده است.

12– اگر مسلمانی در میانمار قصد دایر کردن فروشگاهی را داشته باشد باید با یک بودائی شریک شود. فرد بودائی در این شرکات هیچ سهمی را نمی‌پردازد اما از سود حاصل از این فروشگاه بهره‌مند می‌شود.

13– دولت ژنرال «نی وین Ne Win» پس از روی کار آمدن در ۱۹۶۲ رفتن مسلمانان به حج را ممنوع اعلام کرد تا آنکه در ۱۹۸۰ پس از گذشت ۱۸ سال به هفتاد نفر از مسلمانان اجازه داده شد، جهت انجام فرایض حج به مکه مشرف شوند و متعاقب آن عده‌ای از مسلمانان نیز جهت شرکت در کنفرانسهای مختلف اسلامی اعزام شدند.

14– «تین سین»، رئیس جمهور فعلی میانمار جمعیت ۸۰۰ هزار نفری مسلمان روهینگیا در این کشور را قومیتی خارجی دانست و گفت: مسلمانان شهروند میانمار نیستند یا باید در اردوگاه‌های آوارگان متمرکز یا اخراج شوند.

**مسؤلیت مسلمانان جهان در باره مسلمانهای برما:**

برادران عزیز طوریکه می دانیم در حال حاضر بالای همه مسلمانهای جهان جهاد فرض عین است و دفاع ازسرحدات و ممالک مسلمین فرض است و ترک کردن این فریضه یک گناه کبیره و از خصلت های منافقین شمرده می شود. بس باید همه مسلمانان جهان باهم اتفاق و اتحاد کرده و در هر گوشه و کنار دنیا کفار و همکاران آنان را زیر حمله گرفته و به جهنم ابدی روان کنند.

مدت زیاد میشود که ظلم، وحشت وتجاوزبالای امت ناجی بشریت ادامه دارد و طبق آمار رسمی در برما، 20 هزار کشته، و طبق آمار غیر رسمی 52 هزار کشته ، 50مسجد به آتش کشیده شده است، بالای 5 هزار زنان مسلمان تجاوز صورت گرفته است، 17 روستا اهل حق ویران شده است و 30 هزار مسلمانان در برما ناپدید شده است.

چندی قبل یک ویدیو بسیار دردناک و غمناک را مشاهد کردم به الله ج قسم که تاب دیدن آن را نداشتم . در این ویدیو می بینم که توسط افراد درنده صفت (بودایان بی دین) یک طفل مسلمان برمایی بعد از دستگیر شدن بالای تایر موتر شانده می شود وبعد ازآن به آن تایر آتش زده و طفلک مظلوم فغان و فریاد می زند و طوری خیز و جست می زند مانند یک حیوان ،تمام بدن مظلوم این طفلک آتش گرفته و در همین حالات مظلومیت دنیا فانی را ترک می کند.والله افسوس که......

برادران این یک مثال بود ،مشت نمونه خروار بسیار زیاد مثال ها است که شما در صفحات انترنتی آن را مشاهده کرده می توانید و از حال مظومیت مسلمانان برما خود را خبر کرده می توانید.

برادران عزیز اگر درحال حاضر رسول الله ص زنده می بود چه می کرد؟رسولی که در مقابل بی عفتی یک زن مسلمان معاهده را با بنی قریظه شکست و اعلان جنگ کرد و تمام جوانان آن را ذبح کرده و زنان آن را کنیز کرد.

برادران عزیز همت کرده و از خواب غفلت دیگر بیدار شوید و از مظلومیت مسلمانان برما وتمام مسلمانان مظلوم جهان به جان،مال و قلم دفاع نمایید.

**چرا خاموشی جهانیان؟**

وقتی که چند ماه قبل یک پیلوت اردنی توسط گروه دولت اسلامی عراق دستگیر شده و بعد از دستگیر شدن به آتش زده و کشته می شود،بعد از سوختان و کشتن پیلوت مذکور تمام دنیا به فغان می آید و تمام ممالک کفری و نام نهاد اسلامی می گویند که این یک عمل غیرشرعی و غیر انسانی است و تمام رسانه ها نیز این عمل را تقبیح نموده و خلاف شرعیت اسلامی وبشریت خوانده ،اما برعکس که در برما روزانه به ده ها مسلمانان به آتش انداخته و سوختانده می شود همه ممالک کفری و نام نهاد اسلامی در مقابل آن خاموش بوده وهمچنان رسانه ها نیز خاموشی نموده،آیا سوختاندن مردم مظلوم مسلمانان برما خلاف قوانین بشریت نبوده؟آیا سوختاندن مسلمانان برما خلاف قوانین بین الملل نبوده؟آیا برمایی های مظلوم در روی زمین حق زندگی را ندارند؟

تقریبا یک ماه قبل در ولایت قندهار نیز یک عمل بسیار قبیح توسط مرتدین حیوان صفت مرتد جنرال عبدالرازق تکرارشد،طوریکه دو تن مجاهدین را بعد از به شهادت رساندن شان به آتش زده و سوختاندند،به سوختاندن این مظلومان نیز تمام رسانهای غربی خاموشی نموده و هیچ یادی از آن نه نمود.آیا این عمل خلاف قوانین بشریت نبوده؟

آری ....در آخر به این نتیجه می رسیم که برای کفار وهمکاران آن زندگی یک مسلمان هیچ اهمیت ندارد.

برادران مسلمان!

بیدار شوید به الله ج قسم که امروز این حالت بالای مردم مظلوم مسلمانان برما هست فردا بالای ما وشما می آید.

دست به جهاد مسلحانه زده ودرهر کنج و کنار دنیا به ضد کفار و همکاران آنها جهاد نموده و انتقام مردم مظلوم برما وتمام مسلمانان جهان را بگیرد.




# د سوریې تقسیم

## د ښکېلاکګرو ستر پلان او د عربي نړۍ راتلونکې..

لیکوال: سمیع الله مبارز

که غواړو، چې نړۍ کې د ښکېلاکګرو هېوادونو په شومو موخو او اهدافو خبر شو، نو باید د نړیوالې دیکتاتوري اتحادیې «ملګرو ملتونو، ناټو او امنیت شورا» څرګندونې په دقت وڅارو او د پخواني لنډ تاریخ په رڼا کې یې تحلیل کړو.

ناټو د امریکا او اروپا د ښکېلاکي اهدافو د پلي کولو ګډه نظامي څانګه ده او د دغو هېوادو د ستراتیژیکو ښکېلاکي موخو لپاره کارکوي.

۱۹۸۹م کال کې چې د برلین دیوال ونړېد او ورسره د کمونیزم ټغر هم د نړۍ له سره ټول شو، نو د ناټو د هغه مهال مشر لونډ جوزیف په څرګندو ټکو وویل، چې اوس دوی د یو بل دښمن په لټه کې دي، چې د کمونیزم پر ځای به دوی اوس ورسره په جګړه کې وي او هغه دښمن اسلام دی او دوی باید دغه جګړه په نه ستړې کېدونکو هلو ځلو پر مخ بوځي او هغه مهال د امریکا« اکانومیست» مجلې د لونډ جوزیف څرګندونې په خو پاڼو کې راخیستې وه.

د لونډ جوزیف څرګندونې او وړاندوینې رښتیا شوې که څه هم هغه به دا خبرې د خپلو باوري معلوماتو له مخې کړې وي، چې دوی به یو وخت دغسې بریدونه کوي، مګر د اسلامپالنې ګواښ د ستر شوروي اتحاد -چې زرګونو اتومومي وسلې، جنګي بېړۍ او توغندي لرې- سره ورته ښوول د خلکو له نظره مناسبه نه بریښېده او امریکا د همدې کوچني او فرضي ګواښ له مخې پر افغانستان یرغل وکړ، عراق یې اشغال کړې او لیبیا یې هم ونړوله.

څه موده وړاندې د ناټو پخواني سرمنشي اندرس فوګ راسموسن د سوریې په موضوع یوې غونډې ته په خپله وینا کې په څرګندو ټکو وویل، چې موږ باید سوریه هم د بوسنیا په څېر په مذهبي او قومي کرښو تقسیم کړو.

دا ډول څرګندونې هسې اټکلي نه وي، بلکې دا د امریکا او اروپا د اوږدمهالي ستراتیژۍ برخه وي، چې دوی یې په خپل فکر په مناسب وخت کې رابرسېره کوي او بیا د خلکو او نړیوالو غبرګونونه ورسره څاري.

### د بوسنیا جګړه او د ملګرو ملتونو رول

بوسنیا کې له ۱۹۹۲- ۱۹۹۵م کاله د صربیانو او مسلمانانو تر منځ جګړې روانې وې او د امریکا استخباراتو «سي ای اې» د دغې جګړې تودولو ته ښه لمن ووهله او عربي هېوادونو هم د امریکا په غوښتنه دغه هېواد ته مسلمان مجاهدین لېږل او مجاهدینو خو پر خپل دین د غیرت له امله دغه جګړه کې برخه اخیسته او هغوی د امریکا او لویدیځې نړۍ له دسیسو نه و خبر، چې دوی دلته خپل شوروي دښمن ټکوي.

له ۱۹۹۲ تر ۹۵ پورې، چې له دوارو لوریو زرګونو خلک ووژل شول، مسلمانان په دې پوه شول، چې د امریکا او نورو لویدیځو هېوادونو له لاسه یو ځانګړی اسلامي هېواد نه شي جوړولی، زړونه یې مات شول، نو متحده ایالاتو ۱۹۹۵م کال کې د امریکا د ډایټن ایالت کې د سولې په نوم کنفرانس راوباله او اعلان یې وکړ، چې بوسنیا باید دوه جلا جلا هېوادونه شي.

اول: د بوسنیا او هرسک فیدرالي حکومت، چې واکمنان به یې مسلمانان وي او دوهم د صرب جمهوري هېواد، چې

واکمنان به يې صربيان وي او دواړو هېوادونو کې يې د ناټو سوله ساتي« ! !» ځواکونه هم ځای پر ځای کړل.

امريکا او اروپا اوس غواړي، چې د سوريې د خلکو په ارمانونو او پاڅون اوبه واړوي، هر څه د خپلې خونړۍ ستراتيژۍ په محور راوګرځوي او سوريه هم په مذهبي او قومي کرښو ووېشي.

د ناټو پخواني سرمنشي دا نه دي ويلي، چې سوريه به پر څو هېوادونو ويشل کيږي.

د پېښو څارونکي وايي، چې د سوريې په وېش کې به مهمه ونډه د ايران وي او د همدې موخې د عملي کولو لپاره د ايران پاسداران انقلاب، حزب الله شيعه ملېشې او بشارالاسد لاس په کار شوي او داسې ښکاري، چې سوريه به په سني او شيعه دولتونو ووېشل شي.

يو شمېر نور کارپوهان بيا دا پوښتنه کوي، که د سوريې د وېش پروسه عملي کيږي، نو د سيمې دورزي اوسيدونکو لپاره به هم جلا هېواد جوړيږي کنه او همدا رنګه د سيمې کرديان، چې عراق، سوريې او ترکيه کې وېشل شوي، د دوی لپاره به هم جلا هېواد جوړيږي کنه؟

که موږ تاسې د بوسنيا د جګړې په اړه د امريکا او ناټو د نويمو کلونو د جنګي الوتکو بمبارۍ او ستراتيژۍ و ارزوو، چې په پايله کې يې بوسنيا په څو هېوادونو ووېشل شوه، نو پوه به شو، چې امريکا او ناټو غواړي، چې خپل هغه پلان دلته هم عملي کړي.

دلته د غربي رسنيو خپرونې هم د خلکو د اذهانو د بې لارې کولو ډېره پرله پسې هڅې کوي او وخت پر وخت د سوريې ځمکه د بشارالاسد او مخالفينو تر منځ د وېشلو خپرونې کوي او د خلکو په ذهنونو کې د بشارالاسد د رژيم او پاڅونوالو د ځواک د پرتلې خبرې کوي.

د سوريې د وېش په اړه د نړۍ ټول دوستان او دښمنان خپلو کې سره يو دي. امريکا، ناټو او روس د سوريې داسې تقسيم غواړي، چې د ايران خيالي شيعه دولت په کې په داسې حال کې قايم شي، چې د سترو ښکېلاکګرو هېوادونو ګټې په کې وساتل شي او بشارالاسد د ايران د ګټو ستره مهره ګڼل کيږي.

د پېښو څارونکي وايي، چې کېدای بشارالاسد به په ډېره لنډه موده کې رسنيو کې د نړيوالې ټولنې دا طرحه وړاندې کړي، چې سوريه بايد د پاڅونوالو او ايراني ايتلاف تر منځ ووېشل شي.

دغه هدف يوازې او يوازې د جګړې او زور په مټ ترلاسه کېدای شي او ايران د خپلو ايتلافيانو، په همکارۍ سوريه کې خپلو بريدونو، چاودنو او بمباريو ته زور ورکړی او د سوريې لکونو اوسيدونکي يې ووژل او لا يې هم وژني او پاتې نور د ايراني ايتلافي ملېشو له لوري له سيمې شړل کيږي او هره ورځ زرګونو کورنۍ له خپلو کورونو بې ځايه کيږي.

بشارالاسد هڅه کوي، چې جګړه بايد هغو سيمو ته انتقال شي، چې ايران يې د خپل خيالي شيعه دولت برخه او حدود بولي او د دې لپاره يې د دمشق سويلي سيمې، قلمون، قصير او زبداني سيمې په خپل کنټرول کې اخيستي او همدا د خپل خيالي هېواد سرحدونه بولي.

بشارالاسد اوس په دې پوه شوی، چې دی د سوريې د کنټرول قوت نه لري، نو مجبور دی، چې د خپل نسبي واک د ساتلو په موخه د سوريې وېش ومني.

امريکا او ناټو هم غواړي، چې سوريه د ايران له پلان او ګټو سره سم ووېشل شي، د همدې موخې د ترلاسه کولو لپاره يې سوريه کې ايران ته د بشپړې لاسوهنې او نظامي مداخلې اجازه ورکړې ده او تر ټولو خطرناکه خبره يې لا دا ده، چې امريکا بشارالاسد د جهادي سني ډلو په پرتله کم ګواښ

بولي او وايي، چې د امریکا تر ټولو ستر دښمن د سوریې او عراقي سني جهادي ډلې دي.

د عربي چارو کارپوهان وايي، چې امریکا منځنی ختیځ په ځانګړې توګه عراق، سوریې، یمن او بحرین کې ایران ته د مداخلې او لاسوهنې بشپړه ازادي ورکړې او غواړي، چې ایران سیمه کې د امریکایي پولیسو دنده تر سره کړي او د سیمې په کچه د امریکا د ګټو مشر ساتونکی هېواد وي.

د سوریې په ټوله غمیزه او خونړۍ جګړو کې ډېره ملامتیا د عربي هېوادونو هم ده او همدغه هېوادونه د سوریې جګړې ته لمن وهي او غواړي، چې سیمه کې د ایران د مداخلې مخنیوی وکړي او بشارالاسد له واکه بې برخې شي، مګر د دې کار لپاره وړ تدابیر او متحده ستراتیژي نه لري او نه هم دومره جرئت کولای شي، چې د ایران د مداخلې د مخنیوي لپاره په زغرده د پاڅونوالو ملاتړ وکړي او تر ټولو بده خبره یې لا دا ده، چې هر عربي هېواد د یمن، سوریې، عراق او لیبیا په اړه خپل جلا جلا فکر او نظر لري، چې یو بل سره په ټکر کې دي.

عربي هېوادونه سیمه کې د اسلامي جهادي ډلو له ځواکه هم په وېره کې دي او یو شمېر یې د پردې تر شا هڅه کوي، چې بشارالاسد په واک کې پاتې شي، تر څو دی او اسلامي جهادي ډلې او بشار الاسد په خپلو کې سره وخوري او د نورو عربي هېوادونو چارواکي ترې په امن کې وي.

## ایا د ناټو دغه پلان به عملي شي؟

دلته یوه خبره ډېره مهمه ده، هغه دا چې د سوریې د روانې جګړې او تاوتریخوالي ګټه ناټو ترلاسه کوي او غواړي، چې سوریه د خپلو ګټو په رڼا کې ووېشي.

ایا د سوریې غیرتي ولس خپل ارام ژوند، تعلیم، صحت او هر څه د دې لپاره قرباني کړل، چې خپل ټولنیز حقونه او ازادي تر لاسه کړي او که د دې لپاره، چې خپل هېواد سره ووېشي؟

د پېښو څارونکي وايي، چې د سوریې د وېش خبره پنځوس سلنه پر ځای ښکاري او که د تقسیم د مخنیوي خبره هم پنځوس سلنه چانس لري.

دلته مهمه خبره د سني جهادي ډلو خپلمنځي اتحاد او یووالي او د عربي هېوادونو ستراتیژي او اتحاد پورې تړلې ده، چې دوی د سوریې په اړه کوم او څنګه دریځ نیسي.

که د سوریې جهادي ډلې او عربي هېوادونه سالمه ستراتیژي وټاکي، نو کولای شي، چې اوس هم سوریه او ګردې عربي نړۍ کې د ایران د مداخلې مخنیوی وکړي او سوریه له تقسیمه وژغوري او که عربي هېوادونه په خپل اوسني عادت روان وي، نو کېدای شي په ډېره لنډه موده کې سوریه د ایران د شیعه دولت مهمه برخه شي او پاتې سوریه به د امریکا، اروپا او ایران په لمسون د خپلمنځي جګړو ډګر وي او تر ټولو لوی قربانیان به یې د سوریې ولس وي.

## که د سوریې د وېش پلان کامیاب شي...

که امریکا او ناټو د سوریې په وېش وتوانېږي، نو دا وړاندوینه هم باید وشي، چې ښکېلاکګر هېوادونه به یوازې د سوریې په وېش بسنه ونه کړي، بلکې له دې وروسته به په راتلونکو وختونو کې د نورو عربي هېوادونو د وېش لپاره هم متې راونغاړي او ډېر ژر به عراق، مصر، سعودي عربستان او نور عربي هېوادونه د خپلو موخو لپاره په ځو ټوټو وویشي.



د افغانستان د اسلامي حزب د امیر او ستر جهادي شخصیت محترم خالص بابا رحمه الله څوی او ځای ناستی او د توره بوره جهادي محاذ مسئول

# مولوي صاحب انوارالحق مجاهد سره مرکه

**توره بوره: د اسلامي امت روانه وضعه څنګه ارزيابي کوئ؟**

مجاهد صاحب:

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله والصلاة والسلام على رسول الله.

وبعد:

اسلامي امت په خپل معاصر تاريخ کې تر ټولو سخت ترينه مرحله طی کوي، تر ټولو ستره بدبختي دا ده چې له يوې خوا د نړۍ په کچه کفري مليتونه د خپلو مذهبي، کلتوري او ثقافتي، فکري، نژادي او سمتي توپيرونو سره سره په دې يوه خبره متفق دي، چې اسلام له منځه يوسي او پرې نه ږدي، چې مسلمانان د يوه امت صيغه او شکل خپل کړي، له بله پلوه زموږ د مليتونو، مذهب او ثقافت په لباس ملبس يوه لويه برخه د اسلام د دښمنانو سره همغږې ده، دوی له هغوی ډير بد او خطرناکه ځکه دي، چې له يوې خوا د اسلامي امت په رګونو کې ريشې او قوي مداخله لري او له بله پلوه ډير ځله د اسلام د بدنامولو او په خپل زور او زر سره د اسلام د تحريف او تشويه وسيله هم ګرځي او همدوی دي، چې اسلام او اسلامي امت يې يرغمل کړی، په ټوټو يې ويشلی او څنګه يې چې زړه غواړي له اسلام او مسلمانۍ څخه همغسې تعبيرونه کوي، خو يوه خبره چې د خوښۍ اميد ورته لرلی شو، هغه داده، چې په مسلمانانو کې بيداري راغلې او دغه بد حالت يې درک کړی، دا بيله ده، چې فی الحال به د وضعې د تغير توان نه لري، خو د مرض تشخيص خپله د نجات او علاج په لورې يو ستر ګام دی، دا چې د اسلامي امت ډيرو علماء کرامو، سياستمدارانو، ځوانانو او پوهانو دا بد حالت درک کړی، کيدای شي يو وخت د اسلامي امت بېړۍ له ګرداب څخه د نجات خواته بوځي. ان شاءالله

**توره بوره: نو بيا د دې امت د ستونزو حل په څه کې ګورئ؟**

مجاهد صاحب: زما په اند تر ټولو مهمه داده، چې موږ په اسلام ځان پوه کړو او په ريښتني اسلام سم روان شو، اسلام د ځان تابع ونه ګرځوو بلکې ځان د اسلام تابع کړو، لکه امام مالک بن انس رحمه الله چې فرمايي (لن يصلح امر هذه الامة الا بماصلح به اولها ) يعنی د امت د پای د ستونزو او کمزوريو علاج هغه څه دی چې دامت پيل پرې له کمزوريو او ستونزو ساتل شوی وو. نو د امت په خيرالقرون کې، چې ابتدايي مراحل د امت ګڼل کيږي، دوه صفتونه ډير د پام وړ دي، چې اوس هم ممکن دي او د امت د حالاتو د اصلاح سبب ګرځيدلی شي، يو دا چې مسلمانان واقعاً يو امت وګرځي په دې معنی چې يو مسلمان د بل مسلمان ورور په درد درمند شي تر څو د جسد واحد تمثيل وکړي، په صدر اسلام کې امت همدومره منسجم او نژدې وو ،خو يواځې ظاهري همغږي او سياسي نزديکت او يا د استعماري قوتونو په خير د يو والي په نوم په خلکو خپله واکمني منل د امت وحدت منځ ته نه شي راوړلی، د امت

قیادت یوائې پر امت د حکومت په معنی نه دی، بلکې د امت د هر وګړي او د هرې برخې د ولسونو یې د عملي دفاع مسئولیت په غاړه اخستل دي.

نن چې په برما، میانمار کې بودایي مشرکان ژوندي مسلمانان په اور سوځوي، اندامونه یې په ژوندانه غوڅوي او مسجدونو، کورونو او باغونو ته یې اورونه اچوي، خو د اسلامي امت په سر مسلطې واکمنۍ حتی ځینې جهادي حرکتونه د دې ناوړه اعمالو په غندلو او په دې اړه د خواشینۍ په رسمي بیانونو اکتفاء کوي، په دا دومره لویه اسلامي نړۍ کې د هغوی د عملي دفاع او نجات لپاره هیڅ څوک لاس په کار نه شول.

هر کال حتی په دغه تیر نږدې اختر کې په هندوستان کې هندوانو د اسلامي شعائرو په جرم د مسلمانانو مرۍ پرې کړې، د څارویو د حلالولو په بدل کې مؤمنان حلال شول او زما په فکر تر اوسه به ډیرې اسلامي پرګنې له دې څخه خبرې هم نه وي، هسې خو د اسلامي امت د وحدت او یو والي په عنوان ډیر بیرغونه پورته شوي، د اسلامي کنفرانس په شمول ډیرې داسې واکمنۍ او حرکتونه شته، چې ځانونه د اسلامي امت د قیادت علمبردار بولي، خو بیا د دوی په آند انسان، مسلمان او د مرستې حقدار یوائې همغه څوک دي، چې د نورو له خوا په ټاکل شوي محدوده کې سره راټول دي، په اوسني وخت کې زموږ ادعاء، افکار، عمل او د مسئولیت احساس سره په ډیر لرې واټن کې موقعیت لري.

دوهم صفت دا چې په ریښتوني توګه اسلام ته منقاد شو زموږ سیاسي، اجتماعي، عسکري او نورې ټولې چارې له اسلام څخه الهام واخلي، اسلام او غیر اسلام سره ګډ نه کړو او نه سره ګډیدلای شي، خو که هر څوک دا هڅه کوي، چې په غیر اسلامي لاره به اسلامي حاکمیت رامنځ ته کړي، هسې په ځان او خلکو هم ملنډې وهي او هم بې ځایه ځان ستړی کوي، که موږ په ریښتیا هوډمنه فیصله وکړو د لوی الله په فضل د امت د دې دردمند حالت د ښه والي امید لرلی شو. انشاالله

**توره بوره: ایا تاسو د عالیقدر امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله سره ملاقات شوی وو ؟ او کومه خاطره یې په زړه لرئ ؟**

مجاهد صاحب: هو موږ په قندهار کې د هغوی په کور کې ورسره لیدلي وو او همدا یوه خاطره به کافي وي چې په بې تکلفۍ کې د ډیر رعب او وقار خاوند وو، الله(ج) دې رحم پرې وکړي.

**توره بوره: د شرعي امیر سره په اسلام کې د بیعت شرطونه څه دي؟ او په کومو صورتونو کې د امیر سره شوی بیعت له منځه ځي؟**

مجاهد صاحب: د امت په کچه، چې کوم امیر په شرعي طریقه وټاکل شي د هغه امیر سره د بیعت عظمی لپاره څه شرطونه شته، چې څه یې اصلي او لازمي دي او څه نور یې مکمله شرطونه دي، چې د مکمله شرطونو په انتفاء سره بیعت نه باطلیږي او نه ورسره د بیعت د وجوب انتفاء رامنځ ته کیږي، اصلي شرطونه خو دا دي، چې:

1 - اسلام : ځکه چې کافر په مسلمانانونشي حاکم کیدای، قران کریم کې حکم شوی، چې ولن یجعل الله للکافرین علی المؤمنین سبیلا.
2 - مکلفیت یعنې په شرعه کې مکلفیت ولري، یعنې عاقل اوبالغ وي.
3 - نارینتوب
4 - :کفایة لرونکی یې، په دې معنی چې دومره استعدادولري، چې په سیاسي اوجنګي میدانونو کې دامت سالم قیادت او رهبري وکړي او دومره زور ولري، چې شرعي حدود تنفیذ کړي اوکه د امت په کومه برخه دښمن برید وکړي دومره افراد او اسباب ولري، چې د امت دفاع پرې وکړي.
5 - ازادي [حریت] یعنې غلام نه وي، ځکه که غلام وي، نو له یوې خوا به د بادار له خدمت څخه وزګار نه وي اوبل به دخپل اختیارخاوند نه وي. د بادار په طبیعت به د امت د سرنوشت فیصلې کوي، باید د خپل اختیارخاوند وي.
6 - په ټولو حواسو او اعضاؤ جوړ والی

7 - عدالت

8 - قريشي نسبه.

خو دا هر شرط بيا تفصيلات لري، چې زما په فکر د مرکې په ترڅ کې به دا موضوع هر اړخيزه څېړل مشکل وي، په دې اړه کتابونه او رسالې ليکل شوي، چې هغې ته د مراجعې په صورت کې پوره وضاحت ترلاسه کولای شي.

**توره بوره: د اميرالمؤمنين ملا محمد عمر اخند رحمه الله له وفات څخه وروسته مو د اسلامي امارت له نوي زعيم سره بيعت کړی، که نه؟**

مجاهد صاحب: د اميرالمؤمنين رحمه الله وفات يقيناً ستره غميزه وه او په دې کې شک نشته، چې د هغوی د وفات د دې سترې واقعې منفي اغيزو د امارت ټول حالت اغيزمن کړی او د نوي امير محترم ملا اختر محمد منصور صاحب سره له امير کيدو وروسته تر اوسه زما ملاقات نه دی ميسر شوی، نو تر اوسه مې د بيعت لاس هم نه دی ورکړی.

**توره بوره: د بيعت د نه کولو لاملونه مو څه دي؟**

مجاهد صاحب: ما تاسو ته عرض وکړو، چې تر اوسه منصورصاحب سره زما ملاقات نه دی شوی، کله چې ملاقات وشي د ځينو شرعي او اجتماعي مسائلو په رابطه غواړو له نږدې ورسره ځان پوه کړو، بيا به په دې اړه تصميم نيسو ان شاءالله. تر اوسه مو له هيچا سره هم بيعت نه دی کړی.

**توره بوره: دغه شرعي او اجتماعي مسائل لوستونکو ته واضحه کولای شئ؟**

مجاهد صاحب: نه. دا د مجلس خبري دي نه د مطبوعاتو، خو يوه خبره کولای شو، هغه دا چې کله له سقوط څخه وروسته بيرته د امارت نظم او نظام جوړيدو د هغه مهال محترمو مشرانو ته هم موږ څه په اجتماعي او شرعي مسائلو مشتمل ليک د خپل استازي په لاس استولی وو، چې په هغې کې مو ځينې وړانديزونه کړي وو او څه وضاحتونه مو غوښتي وو، چې د همغه اطمنان په اساس مو د اسلامي امارت په چوکاټ کې د خپل وسې او توان سره د جهاد سپيڅلې وجيبه اداء کوله.

**توره بوره: د اميرالمؤمنين رحمه الله له وفات څخه وروسته د نوي زعيم سره د اسلامي امارت ځينې مخورو غړو مخالفت وښود ايا تاسو هم د دغې ډلې غړي ياست که څنګه؟**

مجاهد صاحب: نه موږ د دغسې کومې مخالفې ډلې برخه نه يو او نه د مخالفتونو طرفدار يو، خو يوه خبره، چې زموږ موقف دی او خپل حق يې هم بولو، هغه دا ده چې ځان پوه کړو، چې موږ څه کوو او کوم خواته روان يو او څه بايد وکړو، چا سره په پټو سترګو ملګرتيا راته صحيح کار نه ښکاري.

**توره بوره: تاسو خبر ياست، چې ډيرو خلکو حتی دالقاعده جهادي تنظيم امير دکتور ايمن الظواهري صاحب هم د اسلامي امارت له نوي امير سره بيعت وکړ، نو ستاسې د بيعت په تاخير سره به د اسلامي امارت د متحد صف انشعاب وېره نه وي؟**

مجاهد صاحب: وروره! زه د يوه مسلمان او مجاهد په حيث د بيعت په اهميت پوهيږم او زه د القاعده د تنظيم غړی نه يم او د نورو په اقتداء هم چا سره بيعت نه کوم، زه خپله دنيوي او اخروي مسئوليت لرم، چې څه بايد وکړم، خو ستاسې تشويش په ځای نه دی، چې زما په موقف به انشعاب رامنځ ته شي، ځکه زه د تفرقې او انشعاب اراده نه لرم، که موږ د انشعابونو پلويان وو نو د امارت له سقوط څخه وروسته به مو دا څوارلس کاله د امارت سره په دومره اخلاص او مينه د جهاد ملګرتيا نه کوله او يا به مو اوس د هغو خلکو سره لاره نيولې وای، چې د انشعاب پلويان دي، زه خپله د اميرالمؤمنين رحمه الله د وفات د واقعې له راښکاره کيدو څخه وروسته هيڅ

یوه مجلس ته نه یم حاضر شوی، نه د چا په پلوۍ کې او نه د چا په مخالفت کې او نه مې تر اوسه د یو چاسره دتللو لپاره تعهد او د ملګرتیا هوکړه کړې، د یو چاسره په ملګرتیا کې د ملاحظاتو او توضیحاتو مطرح کول څه بد کار نه دی او دا زموږ حق دی.

**توره بوره: څنګه چې ستاسې دفعالیت ساحه تر ډیره په شرقي ولایاتو خصوصاً ننګرهار کې ده، نو که تاسو د ( اسلامي امارت یا اسلامي دولت ) یوه سره بیعت ونه کړئ، کیدای شي د دواړو له مخالفت سره مخ شئ، ستاسې خپلو ملګرو ته څه هدایات دي؟ باید څه وکړي؟**

مجاهد صاحب: زموږ د فعالیت ساحه تر مشرقي ولایاتو محدوده نه ده، البته هغه کارونه، چې موږ یې مسئولیت اخلو او چې ډیر تر سترګو کیږي مشرقي ولایتونه دي، خو دغه ستونزه هلته رامنځ ته کیږي چې موږ له یو چاسره ټکر وغواړو، په ننګرهار کې چې دا اوس کومه وضعه حاکمه ده، هم موږ پرې راضي نه یو، دغه حالت نه د عامو مسلمانانو، مجاهدینو او نه په خاص ډول د ننګرهار مسلمان او مجاهد ولس لپاره خیر بولم، داسې حالت باید نه وای رامنځ ته شوی، نو موږ چې له کوم درد او مصیبت څخه کړیږو، نو څنګه به بیا ځان او ملګري په هغه درد او کړاو کې اخته کړم.

**توره بوره: دا کومه غمیزه چې اوس په ننګرهار کې مینځ ته راغلې عامو مجاهدینو او د ننګرهار مظلوم ولس ته مو په دې اړه څه پیغام دی؟ څه باید وکړي؟**

مجاهد صاحب: په دې رابطه څو ټکي عرض کول غواړم:

زه خپله شخصاً روانې غمیزې له حده زیات غمجن کړی یم، د ننګرهار ولس د روسانو او بیا د اسلامي امارت د حاکمیت په دوران کې، همدغه راز په دغه اوسني انقلاب کې د اسلامي او شرعي مسئولیت په احساس او د پښتني غیرت له کبله د مجاهدینو کلکه ننګه او ملاتړ کړی، هره حجره یې د مجاهدینو مرکز ګرځولی و، موږ په دې رابطه چې دغسې بد حالت رامنځ ته نه شي او ولس له دغسې کړاوونو سره مخ نه شي لکه نن یې چې ګورو، په ابتدایي مرحلو کې مو ډیر کوشش وکړ او موږ په دې پوهیدو، چې ددې غمیزې بدې پایلې به زموږ ملت وځپي او موږ غوښتل چې ولس یو د خیر حرکت وکړي، خو متاسفانه هغو خلکو چې دا موضوعات یې سرسري او ناچیز ګڼل او د ملت د نجات څخه ورته د اسلام په پوښ کې پوښلې خپلې سیاسي ګټې ډیرې اهمې وې، زموږ په خبره غوږ کېښنود او همدغه راز ځینو ناپوهه ننګرهاریانو دا ولس په داسې بې ګودره سیلاب ورګډ کړ، چې د نجات هیڅ ذریعه یې په لاس ورنه کړه، موږ ډیرې چیغې ووهلې، چې دا یې د حل لاره نه ده، خو وطن د تل لپاره بې علمه او بې عمله شیخانو او د لویو ګټو په ځای د وړو وړو ګټو لاس ته راوړو نکو چاپلوسانو او بې تدبیره مغروره حاکمانو وران کړ، موږ پرته له دې، چې د یوې مخلصانه مشورې اومنډې توان ولرو، نور مو هیڅ په وس پوره نه و. موږ ویل کومه جګړه چې په ننګرهار کې پیښه شوې د دې پرځای چې نور هم تېل پرې وشیندو د خاورو اچول پرې بهتر دي او دا جګړې به زموږ ولس ته بد پیغامونه ولري، نو ځکه مو ور څخه برائت هم اعلان کړ، تر هغه مهاله لا د ولس لمنې اور نه وو اخستی. اوس ښه داده، چې په داسې مسائلو کې باید ولسي مشران د خیرخواهۍ او د شر د دفعه کولو او د فتنې د اور د ختمولو هڅه وکړي، داسې ونه شي چې الله(ج) مه کړه د کابل اداره له موقع څخه په استفادې سره زموږ په ازاد او مجاهد ولس کې نفوذ پیدا کړي او یو څو لنډه غر او ملي خاینان له کابله پیسې ترلاسه کړي او زموږ ولس په نورو داسې مشکلاتو کې ښکېل کړي، چې بیا به د وتو په چل نه پوهیږو او هغوی خو به د دوبۍ، ایران او اروپا په هیوادونو کې د پناه لپاره سر له اوس څخه بندوبست کړی وي، دا اوس چې هغوی هر یو دعوه لري چې موږ دومره نفوذ او په جنګ کې افراد لرو خپل زامن او خپل کور او کهول نه یادوي غواړي همدغه د ولس مجبوره بچیان نور هم د ځان په ویر او غم اخته کړي، ولس د جنګ تحمل نه لري نو ځکه ترینه باید ځان وساتي.

مجاهدینو ورونړو ته مې همدا توصیه ده، چې له صبر، زغم او تحمل څخه کار واخلي د شریعت لپاره راپورته شوي او خوارلس کاله یې ستړیاوې ګاللي، د اسلامي شریعت په رڼا کې د ځان لپاره مرګ و ژوند انتخاب کړي، تر څو یې دنیوي او اخروي سعادت په نصیب شي.

**توره بوره: ستاسي له خوا داسي اعلامیه نشر شوه چې له دې وروسته به تاسو ته منسوبې ډلګۍ په ننګرهار کې وجود نه لري، د دغسي یوه اقدام لاملونه څه دي؟ او پایلې به یې څه وي؟**

مجاهد صاحب: لاملونه دومره ډیر دي لکه څومره چې ستونزې ډیرې دي، ځکه د دغه اقدام لاملونه همدا ستونزې دي، چې موږ ورسره مخ وو، خو عمده لاملونه یې دوه دي:

یو دا چې زموږ ولس په موږ اعتماد کړی، دالله(ج) په لاره کې د جهاد کولو لپاره یې د خپلو قیمتي ځوانانو اعتبار په موږ کړی، موږ هم ددغه ستر امانت په وړاندې دروند مسئولیت لرو، نو لکه څرنګه چې له دوی څخه د جهاد په لاره کې استفاده زموږ مسئولیت او دنده ده، دغسې په بې ځایه ځای کې د دوی د ضائع کیدو مخنیوی او حفاظت او د دوی د ټولنیزو او مالي ستونزو حل هم زموږ وجیبه او شرعي او اخلاقي دنده ده، موږ چې په ننګرهار کې حالت ته وکتل له یوې خوا په بې هدفه مسایلو کې زموږ د ملګرو د ښکېل کېدو او بالاخره په بې ځایه ځایونو کې د هغوی د ضائع کیدو ویره رامنځ ته شوې وه او بله دا چې د ډلګیو په شکل کې دوی له ډیرو امنیتي خطراتو سره مخ و ، تاسو ولیدل په لږ وخت کې ز موږ څو تنه ډلګۍ مشران چې په ننګرهار کې د شهرت له کبله د دښمن هدف وګرځیدل او په شهادت ورسیدل، د ډلګیو روان سیستم له جاسوسانو محفوظ نه دی.

دویم دا چې د ډلګیو په شکل کې زموږ سره ډیر ملګري راټول شوي وو، چې شمیره یې زرهاوو ته رسیده او د دومره ملګرو صحیح پالل چې په دې کې مجاهدین شهیدان، اسیران او مهاجرین هم شامل وو ډیره مشکله وه، موږ خپل کوښښ وکړ، چې د خپلو مجاهدینو د حقوقو په اداء کولو کې پاتې رانه شو، خو متاسفانه نور زموږ له وسې پوره نه وه زموږ څخه یې ډیر مصارف غوښتل او بله دا چې دغسې چریکي جګړو لپاره د دومره ډیرو خلکو ضرورت هم نه وو، بالآخره مو فیصله وکړه، چې موږ باید د خپلو امکاناتو او مالیاتو په محدوده کې خپل کار په مخ بوځو ان شاءالله او په هغه طرز او طریقه دښمن ته ضربه ورکړو، چې موږ په اسانۍ او لږو مصارفو خپل اصلي هدف ته ورسیږو. ان شاءالله

د توره بوره محاذ تشکیل هیڅکله لغوه شوی نه دی او نه موږ جهاد پرېښې، اونه مو د جهاد دغه مورچل نړولی، هغه څوک چې وتوانیږي له ډلګۍ پرته په لږو خو صالحو او پاکو خلکو جهاد ته ادامه ورکړي دا له هغو ډلګیو ډیر بهتر دی، چې ډیر خلک یې ځان سره راټول کړي وي، خونه یې د مشکلاتو حل ته رسیدګي کولای شي اونه ور څخه سالمه او مطلوبه استفاده ترلاسه کولای شي.

**توره بوره: تاسو به تر کومه د صلیبیانو او د هغوی په لاس د رامنځ ته شوي ریژیم په خلاف جهاد ته ادامه ورکوئ؟**

مجاهد صاحب: تر څو چې موږ شرعي مکلفیت ولرو ان شاءالله؛ او موږ تر هغه په دې جهاد مکلف یو تر څو چې د صلیبي ځواکونو مستقیمه او غیر مستقیمه قومانده په پوره ډول پای ته نه وي رسیدلې.

**توره بوره: په پای کې د نړۍ مسلمانانو او په ځانګړې توګه د افغانستان مظلوم او مسلمان ولس ته څه پیغام لرئ؟**

مجاهد صاحب: د نړۍ مسلمانان باید ځیرکه او وسي. هر قشر دې په خپله ساحه کې ځان په اسلام پوه کړي، بغیر له پوهې په یوه مذهب عمل نشي کیدای، تر ټولو دمخه په دین پوهه مهمه ده، د مثال په توګه که یو څوک د مسلمانانو قیادت او رهبري په غاړه لري، هغه که د کوم اسلامي ملک دی که د کومې اسلامي منظمې دی باید په خپلو ورسپارل شوو مسئولیتونو کې د اسلام له هدایاتو ځان خبر کړي، چې د یوه قائد، حاکم او سیاستوال په توګه ورته د اسلامي نقطه نظر څخه څه کول په کار دي، خپله خارجي او داخلي پالیسي

دي، زموږ ټول مال متاع د حکومت په تحویل کې ده، د کمیون په نوم اجتماعي کوټې راته جوړې شوي دي چې سل کسان په کې اوسیږو په ورځو ورځو په نهره او لوږه وخت تیروو د خوراک لپاره هیڅ نه راکولو کیږي، له خپل ژوند څخه بیزاره یو، موږ له خپلو میرمنو څخه جلا شوی یو، نه پوهیږو چې په هغوی به څه تیریږي، د خاوند لپاره د میرمنې کتل ممنوع او بند دي. « د دعوت مجله ریاض ۱۹٦٦ کال ستمبره»

د اندونیزیا (( ابراسي ) ) نوم اخبار لیکي: په مشرقي ترکستان کې تر اوسه پورې د کمونیزم په لاسونو باندې په زرګونو مسلمانان قتل کیږي، ټکول کیږي، وهل او بندیانول یې روزانه عمل ګرځیدلی دی، مساجد ړنګول کیږي، دیني کتابخانې په اورونو سوځول کیږي د ۱۹٦٦ میلادي کال په منځ کې د ترکستان ۷۵ پنځه اویازره مسلمانان د رمضان په میاشت کې په شهادت ورسول شول، چینایې حکومت ډیره هڅه کوله چې دا خبر پټ وساتي خو بیا هم نړۍ ورباندې خبره شوه. په ۱۹۲۱م کال کې د کمونیستي بلاګ رسمي ریوټ دا و چې: تر اوسه پورې اووه لکه مسلمانان په اجتماعي توګه قتل شوي دي. «الندوه مجله مکه مکرمه»

چینایي وحشي کمونیستانو نه یواځې دا چې ترکستاني مسلمانان یې په شهادتونو ورسول بلکې د هغوی دیني مرکزونه یې هم له منځه یوړل، دیني مدرسې یې ړنګې کړې، مسجدونو ته یې اور واچاوه، اسلامي کتابخانې یې وسوځولې او په هر ډول اسلامي تعلیماتو یې کلك بندیزونه ولګول، دا دي د بشر د حقوقو علمبرداران چې نن موږ ته تمدن او د بشر حقوق راښايي ! !

د ترکستان په مسلمانانو مذهبي بندیزونه:

د مشرقي ترکستان په مظلوم او بې وسه مسلمانانو د چینایي وحشي کمونیستانو لخوا ډول ډول بندیزونه ولګول شول چې د دغه بندیزونو زیاتره اړیکي د دیني چارو سره وي چې په لاندې ډول ترې منع شوي ؤ:

۱: د ترک یا ترکستان لفظ باندې کلك بندیز. ۲: په حج، لمونځ، روژه او دیني زده کړه او تبلیغ باندې بندیز. ۳: د بل هیواد راډیو اوریدل او اخبار لوستلو ممانعت. ٤: بغیر له اجازې نه سیاحت نکول. ۵: پ کورونو کې د میلمه په ساتلو بندیز.

٦: د بهرینو هیوادونو په مخکې په ځان غمژن کولو بندیز.

۷: مستخدم نه ساتل. ۸: د ودونو او جنازو مراسم نه ادا کول. ۱۰: چینایي وګړو ته د خطائی نسبت نه کول. ۱۱: د غوښې او غوړو نه استعمالول. ۱۲: د ریښمو، وړیو او نورو قیمتي لباسونو په استعمال بندیز. ۱۳: په کورونو کې د روپو او نورو قیمتی شیانو نه ساتل.

د پورته ذکر شوو بندیزونو څخه علاوه په ترکستانیانو باندې لاندې شیان لازمي وګرځول شول:

۱: ماوزتنګ ته د ژوندي خدای خطاب کول.

۲: عربي، فارسي او روسي اصطلاحاتو پر ځای چینائي اصطلاحات استعمالول.

۳: په هر کور کې باید یوه کمره یا اطاق د چینایي اوسیدونکو لپاره خاص کړی.

٤: هره ورځ یو تعداد لرګي جمع کول او هغه حکومت ته ورکول.

۵: تر درې میله فاصلې پورې موټر نه استعمالول.

٦: زړې جامې اغوستل او له ودونو ډډه کول.

۷: خپلې لوریانې چینایانو ته ورکول.

۸: د سړیو لپاره د ګیرې نه پریښول او د ښځو لپاره د حجاب نه په سر کول.

او داسې نورو زره بوږنوونکي ظلمونه اوس هم دوام لري خو د بشري حقوقو درواغجن مدافعان په دې هکله هیڅ غږ نه پورته کوي، همدا راز اسلامي هیوادونه او اسلامي نړۍ هم مجرمانه خاموشي غوره کړی او ترکستاني مسلمانان یې د چینایانو ظلم او ستم ته یواځې پریښي دي.الله جل جلاله دی د دې امت په حال رحم وکړي.

مأخذ: په اسلامي نړۍ د کافرانو ظلمونه، په اسلامي نړۍ یرغل، ځیني مجلې او ورځپاڼې او د ترکستان په هکله لیکل شوي ځیني تاریخي کتابونه.

په تیر پسې

# د انفال او التوبه سورتونو اهم مضامین او ارشادات (تبوک غزا)

مفتي ابو عامر صاحبزاده

## هجرت

د توبې سورت د اهمو واقعاتو له جملې څخه دریمه هغه د هجرت ده، چې دې ښېښې ته په ۴۰ م ایت کې اشاره شوې ده. دا موضوع مو دلته په یو څو بحثونو وېشلې ده. اول: د دې ایت مختصر تفسیر او تشریح. دوهم: د هجرت تعریف او اقسام. دریيم: د هجرت حکم او حکمتونه. څلورم: د رسول الله صلی الله علیه وسلم د هجرت کیسه او تاریخي شالید .

اول بحث: د ایت مختصر تفسیر او تشریح

په ۴۰ م ایت کې الله تعالی جهاد او قتال في سبیل الله ته ترغیب ورکوي او ضمنا د هجرت ښېښې ته اشاره کوي. همدا ډول د جهاد پرېښودونکو ته عتاب ورکوي، ورسره یې د ابوبکر رضي الله عنه فضیلت او صحابیت هم ثابت کړی.

ایت فرمايي :{ إِلَّا تَنْصُرُوهُ فَقَدْ نَصَرَهُ اللَّهُ إِذْ أَخْرَجَهُ الَّذِينَ كَفَرُوا ثَانِيَ اثْنَيْنِ إِذْ هُمَا فِي الْغَارِ إِذْ يَقُولُ لِصَاحِبِهِ لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا فَأَنْزَلَ اللَّهُ سَكِينَتَهُ عَلَيْهِ وَأَيَّدَهُ بِجُنُودٍ لَمْ تَرَوْهَا وَجَعَلَ كَلِمَةَ الَّذِينَ كَفَرُوا السُّفْلَى وَكَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ}. که چېرې تاسې د دې رسول کومک ونه کړئ ده سره په جهاد کولو کې[ده سره جهاد ته لاړ نه شې] نو الله تعالی د ده کومک کوونکی دی، ځکه الله تعالی د ده په داسې وخت کې امداد کړی چې ور سره فقط یو کس و[ابوبکر] او ټول قوم یې خلاف راپورته شوی و [په واقعه او سفر د هجرت کې] کله چې کافرانو وویست، دویم و له دوو څخه یو ابوبکر او بل پیغمبر[نسبت د اخراج کافرو ته

دا نسبت سبب بعید ته مجازا دی] کله چې یې خپل ملګري ته وویل مه خفه کیږه یقینا د الله تعالی نصرت او کومک او حفاظت موږ سره دی. الله تعالی هم سکینه او اطمنان قلبي وربانديې نازل کړ.

ایت کې د ابوبکر صدیق رضي الله عنه فضیلت او صحابیت ثابت شو. بالاتفاق له «صاحبه» نه ابوبکر مراد دی. سفیان ابن عیینة رحمه الله وایي: د دې ایت په وجه ابوبکر رضي الله عنه د «الا تنصروه» وعید نه خارج شو. ابن عطیه رحمه الله وایي: بلکې د دې عتاب نه هر هغه څوک خارج دي، چې غزوة تبوک ته حاضر شوي وي. عتاب په هغه چا دی، چې تبوک ته نه وي حاضرشوي. علماء کرام فرمایي: څوک چې د ابوبکر له صحابیته انکار کوي، هغه کافر دی. [البحر المحیط ج۵ص۴۲۱۴۵ دار الکتب العلمیة].

قرطبي: « ثاني اثنین» لفظ له رسول علیه السلام نه وروسته د ابوبکر خلافة ثابت کړی.

دوهم بحث: د هجرت تعریف او اقسام

هجرت تعریف: هجرت د هَجَرَ یَهجُرُ، قتل یقتل باب مصدر صیغه ده. لغوي معنی قطع او ترک دی. بله معنی یې مفارقة ده یعني «خروج من ارض الی ارض ومفارقة الوطن والاهل». ځینې اهل لغت یې معنا دا کوي: «هاجر الی الشيء ای انتقل الیه» او «مفارقة الانسان غیره اما بالبدن او باللسان او بالقلب». [الموسوعة الفقهیة ج۴۲ ص۱۲۲]

کله چې د «ها» کسره شي او کله که د «ها» پېښ [ضمه]شي بیا یې معنی فحش او غلطې خبرې دي. «هجر المریض في کلامه» کله چې مریض ګډې وډې خبرې شروع کړي او هجر په فتح د «ها» سره د یوې قبیلې نوم دی.

د هجرت شرعي معناوې:

۱ - صاحب د مصباح المنیر داسې لیکي: دار کفر نه دار اسلام ته انتقال دی. کله چې د الله تعالی د قربت او ثواب په نیت وي. [مصباح المنیرج۲ص۱۳۴ ].

۲» - ترک الوطن الذي بدار الکفر الی دار الاسلام». [مرقاة المفاتیح ج۱ص۴۴۲ ]

۳ - په فتنه کې واقع کېدو له ډاره او د دین د اقامة په خاطر دار کفر نه دار اسلام ته راجلا کېدل دي. [عمدة القاري شرح البخاري ج۱ص۲۴].

۴ - ابن حجر رحمه الله بیا وایي: «و في الشرع ترک ما نهی الله عنه». [فتح الباري ج۱ص۱۲ دارالمعرفة ]

د هجرت اقسام:

ابن دقیق العید پنځه ذکرکړي: حبشې ته. مکې مکرمې نه مدینې منورې ته. د نورو قبایلو هجرت پېغمبر علیه السلام ته د دین زده کړې لپاره او بېرته خپلو قبیلو ته تلل چې هغوی ته زده کړی دین وښایي. د مکې اوسېدونکو به چې اسلام راوړ، نبي علیه السلام ته به راغلل[هجرت به یې وکړ] بېرته به مکې ته لاړل. پینځم دا چې د ټولو ګناهونو نه هجرت. [احکام الاحکام دابن دقیق العید ج ۱ص۲۲]

علامه بدرالدین عیني رحمه الله درې اقسام نور هم ورسره زیات کړي: حبشې ته دوهم هجرت، څکه صحابه کرامو حبشې ته دوه هجرته کړي. د هغه چا هجرت چې کفري هېواد کې اوسیږي او د دین په اظهار توان نه لري، په ده باندې دار اسلام ته هجرت واجب دی. درېیم دا چې په اخره زمانه کې د فتنو د ظهور په وخت شام ته هجرت کول. [عمدةالقاري ج۱ص۳۲]. ټول بیا اته اقسام شول.

حافظ ابن حجررحمه الله وایي: اسلام کې هجرت په دوه طریقو ثابت او واقع دی: دارخوف نه دار امن ته، لکه حبشې ته او ابتداء کې مکې نه مدینې ته. دوهمه دا چې

داركفر نه دار اسلام ته. كله چې پېغمبر عليه السلام په مدينه کې استقرار وموند. چا به چې وس درلود هجرت به يې ورکاوه. دا هجرت[ مدينې ته] خاص و تر فتحِ مکې پورې. كله چې مكه فتح شوه اختصاص ختم شو او په عامه توګه دار كفر نه انتقال د هغه چا لپاره چې وس او توان يې ولري باقي دی. [فتح الباري ج۱ ص۱۲]

علامه ابن القيم رح وايي: هجرت په دوه ډوله دی. هجرت په بدن سره يو وطن نه بل وطن ته. دوهم په زړه سره الله او د هغه رسول ته. دا حقيقي هجرت دی او هجرت د جسد تابع دی، نو محبت، عبادت، خوف او رجاء، توكل، دعاء او عاجزي په دې ټولو کې په زړه سره غير الله نه يو الله تعالی ته هجرت كول، دا بعينه معنی د فرار الی الله ده: {فَفِرُّوا إِلَى اللَّهِ} او مطلوب توحيد هم دا فرار الی الله دی. [الرسالة التبوكية ص ۱۲-۱۷].

په سورة كهف کې درې هجرتونه ذكر دي يو وطن پرېښوول د دين د حفاظت لپاره، چې «فرار بالدين من الفتن» ورته وايي. دا هجرت د اصحاب كهف و. دوهم د دين او علم د زده کړې لپاره هجرت كول دي. ځان نه لوی عالم ته سفركول او هغه نه علم حاصلول. لكه خضر ته د موسی عليه السلام هجرت. درېيم احوال اخيستلو او د رعيت د اصلاح په خاطر سفركول او هر څه نږدې كتل او هر چا ته د هغوی ضرورت حل كول. لكه هجرت د ذوالقرنين.

ملاعلي القاري الحنفي رحنه الله بيا مسلمان سره ترک تعلق، ديارِ بدعة نه بلادِ سنت ته، د علم طلب لپاره او د حج ادا كولو په خاطر وطن پرېښوول، اعتزال عن الناس هم د هجرت په اقسامو کې ذكر کړي دي. [مرقاة ج۱ ص ۴۵]

درېيم بحث: د هجرت حكم او حكمتونه

د هجرت حكم اشخاصو پورې موقوف دی. ځينو خلكو باندې هجرت واجب او په ځينو مستحب دی او په ځينو خلكو هجرت بېخي نه شته. تفصيل دا سې دی:

دار كفر نه دار اسلام ته په هغه چا هجرت واجب دی، چې دا دوه شرطه په کې وي. لومړی د هجرت كولو توان او طاقت ولري. دوهم د دين اظهار ورته ممكن نه وي او نه د دين د واجباتو او ضرورياتو د قايمولو وس لري او بيا هم د كفارو منځ کې او سېږي.

كله چې دا دوه شرطه موجود شي، هجرت بيا واجب او فرض دی او په هجرت نه كولو سره ظالم او ګناهګارېږي. الله تعالی فرمايي: {إِنَّ الَّذِينَ تَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ ظَالِمِي أَنْفُسِهِمْ قَالُوا فِيمَ كُنْتُمْ قَالُوا كُنَّا مُسْتَضْعَفِينَ فِي الْأَرْضِ قَالُوا أَلَمْ تَكُنْ أَرْضُ اللَّهِ وَاسِعَةً فَتُهَاجِرُوا فِيهَا فَأُولَئِكَ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَسَاءَتْ مَصِيرًا} وعيد دی هغه چا ته چې سره له طاقته د كفارو منځ کې پاتې كيږي او هجرت نه كوي. حديث شريف دی زه له هغه چا بېزار يم، چې مشركينو کې اوسيږي[بلاضرورت] بل روايت دی څوک چې مشرک سره واوسېدلو دا هم د هغه په څېر دی [ابوداود.]

كله چې سره له وس او طاقته په هجرت نه كولو وعيدونه راغلي، معلومه شوه، چې بلا ضرورته د سياحت او تفريح لپاره هم د كفارو وطن ته سفر حرام دی. البته علماء كرامو د دې لپاره څو شرطونه ښوولي. لومړی ضرورت او احتياج. مثلا داسې ضروي علم لپاره چې هغه په اسلامي خاوره کې نه وي يا علاج لپاره يا دعوت او جهاد لپاره. دوهم دومره پوهه بايد ولري، چې د هغوی د شبهاتو دفع ورباندې وكولی شي. درېيم دومره ديانداري بايد ولري چې شهواتو او حرامو کې يې پرېوتو نه منع کړي. څلورم دين اظهارولی شي او د خپل معبود عبادت كولی شي. پينځم داسې يو ذليل او سپک كار به هم نه كوي، چې د اسلام او مسلمان شان سره

مناسب نه وي. لکه د کفارو سپي پرېښنځل یا د هغوی نور خدمت کول.

بله خبره چې باید دلته یاده شي، هغه دا چې د هجرت دا حکم بالاجماع تر قیامته باقي دی، ځکه حدیث کې راځي: «لَا تَنْقَطِعُ الهِجْرَةُ حَتَّى تَنْقَطِعَ التَّوْبَةُ، وَلَا تَنْقَطِعُ التَّوْبَةُ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا» [ابوداود ج۳ ص۸ ط حمص] او مغني ابن قدامه هم لیکي: د هجرت حکم تر قیامته پورې باقي دی، دا قول د جمهورو علماو دی. [المغني ج۸ ص۴۵۲ ط ریاض.]

کوم حدیث کې چې راغلي: فتحِ مکه نه وروسته هجرت نه شته، لیکن جهاد او نیة به باقي وي. مطلب يې دا دی، چې هجرت مکې نه مدینې ته ختم شو، ځکه اوس مکه دار اسلام وګرځېدله. دوهم دا چې هغه هجرتِ فاضله واجبه چې د جنت وعده وربانديې ده، هغه ختم شو. هغه پیغمبر ته هجرت و او خپل مال او اهل پرېښوول وو. د پیغمبر علیه السلام له هجرته مخکې هجرت مستحب و، کله چې هغه هجرت وکړ، فرض شو. کله چې مکه فتح شوه فرضیت يې ختم او ندب و استحباب يې باقي دی. [مرقاة ج۴ ص۱۴۸]

مستحب هجرت: دا هغه وخت کې دی، چې د هجرت قدرت لري، خو دې سره دارکفر کې د دین په اظهار هم قادر وي. په هغه چا هجرت نه شته، چې له هجرت کولو عاجز وي. د مرض له وجې یا ضعیف وي لکه زنانه، ماشومان، بوډاګان شول یا د اکراه له امله د وتلو توان نه لري. دوی ته «مستضعفین» ویل شوي او وعید نه مستثنی دي {إِلَّا الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ وَالْوِلْدَانِ لَا يَسْتَطِيعُونَ حِيلَةً وَلَا يَهْتَدُونَ سَبِيلًا.}

د هجرت حکمتونه:

دا یو بدهي او واضح خبره ده، چې هجرت له مشقت او کړاونو ډک عمل دی، ځکه دې کې د خپل محبوب وطن پرېښوول دي. وطن سره مینه هم یو طبعي او فطري کار دی. خپلوانو او دوستانو نه جلا کېدل، نا اشنا وطن او خلکو سره مخ کېدل ټول سخت دي، خو بیا هم د الله حکم دی. هغه په کې اسانتیا راولي او ډېرې دیني، دنیوي او اخروي فایدې يې په کې نغښتې.

لومړی: د دعوت له طریقو یوه اهمه طریقه ده. دوهم دا د انبیاءعلیهم السلام لار ده. ابراهیم، لوط، موسی، هرون اومحمد علیهم السلام ټولو هجرتونه کړي دي. درېیم د دین د سلامتیا او د ایمان د حفاظت او فتنو نه د خلاصون سبب دی. څلورم د عباداتِ الهي لپاره د تمکن او اطمنانِ قلبي سبب دی.پینځم له مشرکینو څخه براء حاصلیږي، دا هم شرعا مطلوب امر دی. شپږم دنیا کې الله تعالی د پراخ رزق، خیر وبرکت او نعمتونو وعده کړې ده{وَمَنْ يُهَاجِرْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يَجِدْ فِي الْأَرْضِ مُرَاغَمًا كَثِيرًا وَسَعَةً وَمَنْ يَخْرُجْ مِنْ بَيْتِهِ مُهَاجِرًا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ أَجْرُهُ عَلَى اللَّهِ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا}. اووم په دښمن باندې د فتحِ او غلبې سبب دی، ځکه هجرت سره مرکز پیدا شي او مجاهد ځان قوي کړي. اتم په صالح اعمالو کې افضل عمل دی. فضیلتونه يې نصوصو کې ثابت دي. نهم په اخرت کې هم د لوی اجر وثواب موجب دی. لسم د هجرت مهال مرګ هم شهادت دی. یوولسم عمر رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د هجرت ورځ د اهمیت او فضیلت له کبله د اسلامي تاریخ لپاره مبدء او اساس وګرځاوه.



# واژه تروریزم وارهاب در اوراق تاریخ

محمدی بغلانی

اگر به اوراق تاریخ نگاه کنیم در می یابیم که بشریت از آغاز دوره های زندگی خویش دچار کشمکش های بوده که جهت های اطراف کشمکش را ظالم و مظلوم، استعمارگر و مستعمره، زورگوی و کمزور، مستکبر و مستضعف، حق و باطل، مسلمان و کافر وغیره تشکیل داده است که تا امروز ادامه داشته و تا قیام قیامت ادامه خواهد داشت. در جریان این کشمکش ها حرف اول را ستمگران، ظالمان، استعمارگران، مستکبرین، طواغیت و لشکریان شیطان می زنند و با ارتکاب انواع جرایم، ظلم، ستم، بی عدالتی، تجاوز، خود را حق به جانب معرفی داشته طرف مقابل خویش را شریر، مرتد، خائن، مفسد، جنایت پیشه، ارهابی، تروریست، اشرار و برمچی معرفی می نمایند .

فرعون قوم بنی اسرائیل را به بندگی خود کشانیده فرزندان شان را به قتل رسانیده و دختران شان را بخاطر استفاده های نا مشروع خویش زنده می ماند و انواع ظلم وستم را بر آنها روا می داشت تا آنکه الله (ج) موسی و هارون (علیهما السلام) را فرستاد تا بنی اسرائیل را از بندگی فرعون نجات داده به بندگی الله (ج) در آرند و دین برحق الهی را برایشان ابلاغ نمایند .

فرعون حضرت موسی وهارون (علیهماالسلام)را ساحر وجادوگر خوانده علیه آنها به تبلیغات می پردازد و رو به سوی مردم نموده می گوید: موسی وهارون آمده اند تا شما را از دین تان بگردانند وفساد را در میان شما رایج سازند.فرعون زیر عنوان دفاع از دین و مقابله با فساد مردم را علیه موسی وهارون(علیهماالسلام) تحریک می نماید .در هر عصری سردمداران نظامهای طاغوتی و فرعونی یک سان بوده ویک نوع سیاست را عنوان کرده و می کنند چنانچه در عصر حضرت محمد مصطفی (ص) که مردم در جاهلیت قرار داشت و دختران شان را زنده بگور می کردند و خدایان ساخته دست خویش را از چوب، سنگ، خرما وغیره مورد پرستش وعبادت قرار داده از آنها کمک و استعانت می خواستند، وقتی حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) که افضلترین پیغمبران الهی است بخاطر نجات دختران شان از زنده بگور شدن و رهایی مردم از ظلمت، شرک و کفر به پیغمبری مبعوث می شود ومردم را به عبادت الله (ج) واحد ویگانه فرا خوانده برای غلام ها و برده ها حق انسانیت و زندگی را اعلام میدارد فرعون زمان (ابوجهل) در برابر دعوت پیغمبر به پا شده مردم را علیه رسول الله تحریک نموده او را به دیوانگی، جادوگری و

ساحری و ارتداد از دین آبایی اش متهم نموده و خود را در مقابله اش با پیغمبرالله (ج) برحق تلقی می نماید به حدی که دست ها را به طرف آسمان بلند نموده دعا می کنند که: ای خدا یا اگر محمد واقعاً پیغمبر برحق توست و ما وی را نمی پذیریم پس از آسمان بر ما سنگ بباران و یا ما را به عذاب دردناکی مجازات کن .

از تاریخ گذشته اگر صرف نظر کنیم به تاریخ معاصر خود و کشور خویش نگاهی باندازیم می بینیم که روسها در رأس اتحاد جماهیرشوروی سابق با تمام نیرو وقوت شان کشور ما را مورد هجوم نظامی خویش قرار داده و بیش از یک ونیم ملیون نفر از ملت مظلوم وبی گناه ما را شهید کرده و همه آبادی های وطن ما را به خاک برابر نمودند هجوم قوای شوری زیر عنوان کمک با افغانان و مقابله با امپریالیزم در معرض اجراء قرار گرفت، مبارزین مسلمانی که از میان مردم خویش برخاسته و بخاطر دفاع از دین، ننگ، ناموس، خاک، سرزمین و استقلال کشور خویش می رزمیدند به نامهای اشرار، بزمچی، اخوان الشیاطین، فساد پیشه، باغی، واجب القتل و مباح الدم معرفی گردیدند.

الله (ج) بندگان مومنش را فرمان می دهد که شما نیرو وقوت و وسایل جهاد ومبارزه تان را خلاف کفار ومتجاوزین آماده نمائید تا دشمنان الله (ج) و دشمنان خود را با آن بترسانید (ترهبون به عدوالله وعدوکم) در این جزء آیه قرآن کریم ازکلمه ارهاب مورد استفاده قرار گرفته که به معنای ترساندن دشمنان الله (ج) ومسلمانان است، کلمه ارهاب واژه مقدس واسلامی است که هر مسلمان مسئولیت دارد تا دشمن خود را بتر ساند تا از هجوم و تجاوزشان دین، مال و جان خویش را حفاظت نمایند .

دشمنان اسلام و مسلمین معنای ارهاب را در زبان دری به تروریزم تعبیر نموده و تعبیر عربی تروریزم ارهاب است .دشمن میخواهد با عنوان کردن ارهاب، تروریزم، بنیاد گرا علیه اسلام-جهاد و مجاهدین را نشانه گرفته مردم مومن ومسلمانی را که در دفاع از اسلام و ارزش های اسلامی، حیثیت، عزت و شرف مسلمانان وامت اسلامی کمر همت می بندند در اذهان مردم کوبیده و واژه های اسلامی را سؤ تعبیر وتفسیر نموده، ناآگاهانه مردم را به کفر و بی دینی سوق دهند .امروز رژیم ها و قدرتهای استکباری سعی می ورزند تا مخالفین خود را با تسمیه ارهابی، تروریست، اشرار، بزمچی و غیره در ذهنیت های عامه بد معرفی داشته موقف برحق شان را نا حق جلوه دهند .تبلیغات علیه اسلام، جهاد، قتال، ارهاب نمی تواند در سطح ملت های مسلمان و امت اسلامی کارگر واقع شوند و مردم از مواضع وعملکرد های باطل وستمگرانه کفار چشم بپوشند. بنا به وعده های الهی لشکر طاغوت شکست خورده، مسلمانان گرچه اندک باشند پیروز می شود و آینده در قلمرو اسلام خواهد بود....

تبرپسې

# دامریکایي اشغالګرو تر چتر لاندې رامنځ ته شوې اساسي قانون



محمد خوګیانی

دریمه برخه

## د جرمونو او سزاګانو معیارونه د وضعي قوانینو سره سم ټاکل

د اشغالګرو لخوا په افغان ولس تپل شوي اساسي قانون کې د کفریاتو له جملې یو هم دادی چې دغه قانون د الله جل جلاله لخوا حلال شوي نه حلالوي او هغه یې چې حرام کړي؛ نه یې حراموي. مثلا الله جهاد حلال او فرض کړی دی، دوی یې آن له فرضیته منکر دي، پرضد یې وسله واله مبارزه کوي، مجاهدین زندانونو ته اچوي، تعذیبوي او شهیدانوي یې. الله جل جلاله د مسلمان پرضد له کافر سره دوستي حرامه کړې، دوی یې په صف کې ولاړ دي او حرام کار ځانته حلالوي، دغسې نور لسګونه نور مثالونه شته دی چې له مخې یې اساسي قانون حلال، حرام کړي او حرام یې حلال کړي دي. د اسلامي شریعت له مخې څوک چې قصدا حلال حرام کړي او حرام حلال کړي، د اسلام له دایرې وځي. د دغې اساسي قانون له مخې جرم هغه څه دی چې په هېواد کې نافذه قوانینو جرم ګڼلی وي. د اساسي قانون ۲۷مه ماده وایي: "هېڅ یو عمل جرم نه ګڼل کیږي خو د هغه قانون له مخې چې د جرم تر ارتکاب د مخه نافذ شوی وي". یعنی که د یو مشخص "عمل" په اړه قانون موجود نه وي او څوک هغه "عمل" وکړي، "جرم" نه بلل کیږي، دغه "عمل" ولو که د شریعت له نظره "جرم" وي، د قانون له نظره ځکه "جرم" نه دی چې د ارتکاب د مخه د دغه مشخص "عمل" په اړه قانون نافذ شوی نه دی.

دا چې اوس په افغانستان کې د شریعت ځای دیموکراسۍ نیولی او اسلامي شرعیت نافذ نه دی نو هغه څه چې شریعت یې حرام بولي، دغه نافذه قوانین یې حرام نه ګڼي، دا چې شرعي قوانین نافذ نه دي نو هغه اعمال چې د شریعت له مخې جرم دی، د دغو نافذه وضعي قوانینو له مخې جرم نه ګڼل کیږي.

همدا ډول د مجرم تعقیبول، نیول او توقیفول هم د شریعت له مخې نه کیږي بلکې د نافذه وضعي غیر شرعي قوانینو له مخې کیږي او سزا به د محکمې په حکم او د هغه قانون له احکام سره سم ورکول کیږي چې د اتهام وړ فعل تر ارتکابه مخکې نافذ شوی وي. د ۲۷مې مادې دوهم بند وایي چې "هیڅوک د قانون له حکمونو پرته تعقیبیدای، نیول کېدای او یا توقیفیدای نه شي. هیڅوک ته سزا نشي ورکول کېدای مګر، د باصلاحیته محکمې په حکم او د هغه قانون له احکامو سره سم چې د اتهام وړ فعل تر ارتکابه مخکې نافذ شوی وي".

په اسلام کې جرم هغه دی چې شریعت جرم ګڼلی وي، ددغه جرم سزا هم هغه ورکول کیږي چې شریعت ټاکلې وي یا یې قاضي ته اختیار ورکړی وی. په شریعت کې ټولو جرمونو ته یا سزاګانې ټاکل شوي یا یې واک و اختیار قاضي ته ورکړل شوی دی. خو د اساسي قانون نصوص وایي چې جرم او سزا به یوازې د نافذه قوانینو له مخې بیانیږي او ورکول کیږي او نافذه قوانین موږ تاسو ګورو چې څومره اسلامي دي.

## د انتخابولو او انتخابیدو حق

اساسي قانون د حکومتي دندې لپاره د انتخابیدونکي او انتخابوونکي کس لپاره دا نه ده شرط کړې چې نوموړی دې مسلمان وي، بلکې دا دروازه یې خلاصه پرېښې او ټولو ته چې د افغان نوم اطلاق پرې کیږي، ولو که کافر هم وي، د انتخابېدو او انتخابوونکي حق ورکړی دی. د اساسي قانون ۳۳مه ماده وایي: " د افغانستان اتباع د انتخابولو او د انتخابېدو حق لري.

له دې حق څخه د ګټې اخېستو شرايط او لارې د قانون له ليارې تنظيمېږي". دغه ماده د اشغالګرو لخوا ددې لپاره مقدمه ده څو خپل ګوډاګيان په ډېره اسانه د دولت لوړو څوکيو ته ورسوي او پر ملت يې حاکم کړي، بيا چې څه ډول اشغالګر او کافر هېوادونه غواړي، دغه ملت ددغو ګوډاګيانو له لارې هغسې رهبري کړي. د مثال په ډول د کرزي د ادارې پر مهال يو هندو شام لال بتيجه په کاناډا کې د افغانستان سفير وټاکل شو، دغه کار که څه هم د اسلامي شريعت له صريحو نصوصو سره مخالف و، خو اساسي قانون له مخې د هغه ټاکنه شوې وه، ځکه د اساسي قانون له مخې د دې دندې لپاره د مسلمان شرط نشته دی او هر څوک چې افغان وي، هندو وي که سک، يهودي وي که مسيحي، د سفارت او دغه ډول نورو لوړ پوړو دولتي څوکيو لپاره هم انتخابېدای شي او هم بل انتخابولای شي.

## د اساسي قانون د حکمونو پيروي

سره له دې چې اساسي قانون له کفريا تو ډک او د اسلامي شريعت د احکامو سره مخالف دی خو پر دې سربېره ددغه قانون مادې وايي چې د اساسي قانون د حکمونو پيروي او د قوانينو اطاعت د افغانستان په خلکو واجب دي او په اساسي قانون ناپوهي عذر نه ګڼل کيږي. د اساسي قانون ۵۶مه ماده وايي: "د اساسي قانون د حکمونو پيروي، د قوانينو اطاعت او د عامه نظم او امنيت رعايت د افغانستان د خلکو وجيبه ده. د قانون له حکمونو څخه بې خبري عذر نه ګڼل کيږي". په عين حال کې د اساسي قانون ۵۷مه ماده د بهرنيانو حقوق او ازادي د اجنبي قوانينو چې دلته يې ورته "نړيوالو قوانينو" نوم ورکړی، سره سم تضمينوي او په هغوی دا لازم نه دي چې د نړيوال قوانينو له حدودو پرته د دغې قانون اطاعت وکړي، د دې څخه موخه دا ده چې د بهرنيانو لپاره د افغانستان د وضعي قوانينو څخه د خلاصون لپاره لاره جوړه کړي، ځکه شايد کومه داسې ماده په اساسي قانون يا نورو وضعي قوانينو کې وموندل شي چې د دوی استعماري ازادي ګواښي.

"دولت په افغانستان کې د خارجي اتباعو حقوق او ازادۍ له قانون سره سم تضمينوي. دا کسان د بين المللي حقوقو د قواعدو په حدودو کې د افغانستان د دولت د قوانينو په رعايت مکلف دي". يعنی که وضعي قوانينو کې داسې څه وموندل شي چې د بهرنيانو له ازادۍ او حقوقو سره په ټکر کې وي او په نړيوالو قوانينو کې هغسې څه نه وي، نو د هېواد نافذه قانون پرې نه شي عملي کېدلای، ځکه خارجي اتباع يوازې د افغانستان د دولت د قوانينو په رعايت او يوازې د نړيوالو قوانينو په حدودو کې مکلف دي او تر هغې اخوا په هېڅ نه دي مکلف. نړيوال قوانين څومره اسلامي دي، يا څومره له اسلام سره اړخ لګوي، دا يو جلا او اوږده موضوع ده.

مسلمانان تر هر څه وړاندې د الله تعالی د دين د احکامو په اتباع مکلف دي، الله فرمايي: ( يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ إِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ذَلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا)( النساء -۵۹). (فَلا وَرَبِّكَ لا يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لا يَجِدُوا فِي أَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا) (النساء– ۶۵).

(وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَمْراً أَن يَكُونَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ وَمَن يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالاً مُّبِيناً)(الاحزاب-۳۶).

همدا راز الله تعالی مسلمانانو ته په دې امر کړی چې هغه څه چې د اسلامي شريعت سره مخالف دی، ونه مني او پرې کافر شي: (أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُوا بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَنْ يَتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوا أَنْ يَكْفُرُوا بِهِ وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَنْ يُضِلَّهُمْ ضَلَالًا بَعِيدًا)(النساء-۶۰).

خو دغه طاغوتي اساسي قانون مسلمان افغان ولس د اسلامي شريعت د اتباع څخه راګرځوي او دې ته يې اړ کوي چې کفري

قوانین چې اشغالګرو امریکایانو او د هغوی ملګرو لخوا په دغه مسلمان ولس تپل شوي، ومني.

## وزیرانو لپاره اسلام شرط نه دی

د اساسي قانون ۷۲مه ماده د نوماند وزیر لپاره لاندې شرطونه ایښي چې په دې کې هم د "اسلام" اساسي شرط نشته دی او دا په لاندې ډول دي:

۱- یوازې د افغانستان د تابعیت لرونکی وي. که چیرې د کوم وزارت کاندید د بل هېواد تابعیت هم ولري ولسي جرګه د هغه د تایید یا رد، صلاحیت لري؛ ۲- لوړ تحصیلات، کاري تجربه او ښه شهرت ولري؛ ۳- عمر یې تر پنځه دېرش کلونو لږ نه وي؛ ۴- د محکمې له خوا د بشري ضد جرمونو او جنایت په ارتکاب او یا له مدني حقوقو څخه په محرومۍ محکوم شوی نه وي".

همدا راز هغه شرطونه چې د امت علماو پرې اجماع کړې چې باید حتما د یوه اسلامي هېواد په لوړ پوړي چارواکي کې وي، تقریبا نشته دی.

## سترې محکمې رییس لپاره اسلام شرط نه دی

د اساسي قانون ۱۱۸مه ماده د سترې محکمې رییس (قاضي القضات) لپاره شپږ شرطونه ټاکلي چې په دغو شپږو شرطونو کې اسلام نشته دی، هغه په لاندې ډول دی:

۱- د ټاکلو په وخت کې د رییس او غړیو عمر تر څلویښتو کلو لږ نه وي؛ ۲- د افغانستان تبعه وي؛ ۳- په حقوقي یا فقهي علومو کې لوړې زده کړې او د افغانستان په قضایي نظام کې تخصص او کافي تجربه ولري؛ ۴- ښه سیرت او نیک شهرت لرونکی وي؛ ۵- د محکمې له خوا د بشري ضد جرمونو او جنایت په ارتکاب او یا له مدني حقوقو څخه په محرومۍ محکوم شوی نه وي؛ ۶- د وظیفې د تصدۍ په وخت کې په هیڅ سیاسي ګوند کې غړیتوب ونه لري.

علما وایي چې په یوه قاضي کې باید لاندې شرطونه خامخا موجود وي، او د دغو شرطونو په نه شتون کې دغه کس د قضا اهل نه دی:

۱- اسلام ۲- بلوغ ۳- عقل ۴- ازادي ۵- نارینتوب ۶- عدل (یعنی فاسق نه وي) ۷- اجتهاد . د دغه پورته مادې له مخې په دې وروستیو کې اشرف غني د سترې محکمې د غړیتوب لپاره یوه ښځه ولسي جرګې ته معرفي کړه. که څه هم په اسلام کې د ښځې قضا په تقریبا ټولو قضیاو کې نه ده صحیح خو د یوه اسلامي هېواد لپاره له دې کبله ښځه قاضي، وټاکل شوه چې په اصطلاح اساسي قانون یې د نه قاضي کېدو په اړه څه نه دي ویلي.

ځینې کسان وایي چې ولسمشر، وزیر او سترې محکمې رییس یا نورو لوړو پوړو چارواکو لپاره د محض افغان شرط کافي دی، ځکه افغانان مسلمانان دي او د اسلام صفت ځانته ذکر کولو ته اړتیا نشته دی. خو دی په دې نه پوهیږي چې اساسي قانون څلورمې مادې د افغان تعریف کړی دی: "د افغانستان ملت عبارت دی له هغو ټولو افرادو څخه چې د افغانستان تابعیت ولري..... د افغان کلمه د افغانستان د ملت پر هر فرد اطلاق کیږي".

نو د اساسي قانون د تعریف په رڼا کې د افغان کلمه په ټولو هغو افرادو چې په افغانستان کې اوسیږي اطلاق کیږي، هغه که مسلمان وي، که کمونیست وي، که هندو وي، که سیک وي، که نور کافر وي. اساسي قانون هېچاته د دې اجازه نه ورکوي چې د چا څخه د افغان صفت چې په دې محدوده جغرافیه کې اوسیږي او د دې هېواد تابعیت ولري واخلي، ولو که هغه کافر هم وي.

یادونه: په دې لیکنه کې د استاد عبدالهادي مجاهد له لیکچرونو استفاده شوې.

نور بیا.....

# فقهي درسونه

## د اصول فقهې علم

ليکوال: ډاکتر محمود احمد غازي رحمه الله
ژباړن: شفيع الله احمدزی

د اصول فقهې فني تعريف «۶»

علماوو د اصول فقهې ګڼ تعريفونه کړي او دغه تعريفونه خپلو کې کوم بنسټيز توپير هم نه لري، يوازينی توپير او اختلاف يې په الفاظو کې دی، موخه او هدف د ټولو يو دی.

د ټولو تعريفونو ګډه خبره دا ده، چې دا هغه احکام او قواعد دي، چې له مخې د شريعت فرعي مسايل په تفصيلي توګه بيانيږي.

دغه فن، چې له دغو قواعدو او احکامو بحث کوي، دې ته اصول فقه وايي.

د اصول فقه موخه او غرض

د دې فن غرض او موخه څه ده؟ له پخوا زمانې د مسلمانانو يو روايت را روان دی او اوس هم په ټولو علمي حلقو کې همدا ترتيب دی، چې هر کله د کوم علم يا فن خبره کيږي، نو د هغه غرض او موخې په اړه بحث کيږي، چې د دې علم موخه او هدف څه شی دی. يعنې له پخوا همدا رواج دی، چې د علم مقصديت وپيژندل شي او بې مقصده علم باندې بايد وخت ضايع نه شی او ټوله خواري بايد يوازې او يوازې په نافع علم وشي.

رسول الله صلی الله عليه وسلم مسلمانانو ته د علم نافع امر کړی او له غير نافع علومو يې د ځان ژغورنې امر کړی دی.

تاواني علم څخه يې د ځان ساتنې سپارښتنه کړې ده.

غیر نافع علم هغه دی، چې د دنیا یا اخرت لپاره ګټه نه لري یا هغه علم، چې د انسان فردي او ټولنیز ژوند لپاره ګټور نه وي.

له همدې امله د هر علم له پیل وړاندې به مسلمانانو د علم غرض او هدف معلوماوو.

د اصول فقه تر ټولو ستر غرض او هدف د الله تعالی پر شریعت عمل او د الله تعالی رضا تر لاسه کول دي.

انسان، چې د الله تعالی پر شریعت عمل کوي، نو الله تعالی به ترې رضا کیږي او پر شریعت د عمل لپاره انسان باید په دې پوه شي، چې د ژوند لپاره تفصیلي احکام له قرانکریم او حدیثو څنګه راوېستل کیږي.

د اصول فقهې دوهم غرض د دنیا او اخرت بریا تر لاسه کول دي او د همدې لپاره قرانکریم د صلاح او فلاح اصطلاحات کارولي دي.

صلاح د دنیا ژوند لپاره او فلاح د اخرت د بریا لپاره.

د اصول فقه پیل:

د اصول فقهې د علم بنسټ صحابه کرامو ایښی دی. صحابه کرامو رضي الله عنهم ځینې داسې قواعد ایښي، چې پر هغو د عمل له برکته د اصول فقهې علم رامنځته شو.

دا چې د اصول فقهې په رامنځته کولو کې د صحابه وو څومره ونډه وه، دا بیانول به ګران وي، مګر بیا هم څو مثالونه به درته بیان کړو.

د اصول فقه یو قانون دا دی، که ته غواړې، چې یو حکم معلوم کړې او یا په یوه موضوع کې د شریعت حکم معلول غواړې، نو کوم حکم چې ستا فهم کې راغلی او له قران او سنت څخه دې کوم مفهوم ذهن ته راغلی، باید دا فکر هم وکړې، چې پر دې حکم له عمل سره به د دې حکم او عمل پایله څه وي؟

که پایله یې هغه وه، چې د شریعت له حکم سره برابر وه، ستا اجتهاد سم دی او که نتیجه یې دا وه، چې د شریعت له حکم سره په ټکر کې وه، نو پوه شه، چې ستا اجتهاد غلط دی. ته باید له سره په خپل اجتهاد او خوارۍ فکر وکړې؛ ځکه چې د شریعت هېڅ حکم هم منفي پایله نه لري.

همدا رنګه چې د کوم حکم په اړه په قرانکریم یا حدیثو کې قطعي او څرګند حکم نه وي او تاسې د هغه د جایز او ناجایز په اړه فکر کوئ، نو باید په نتیجه یې فکر وکړئ، چې پایله به یې څه وي.

دا د اصول فقهې هغه قانون دی، چې صحابه کرامو رضي الله عنهم موندلی دی. دغه اصول حضرت علي رضي الله عنه موندلي وو. له موندلو زما موخه دا نه ده، لکه ساینسپوه، چې یو څه په لابراتوار کې پیدا کوي، بلکې د دې معنا دا ده، د اصول فقهې لومړي او اساسي اصول او قواعد داسې د صحابه کرامو په ذهن په څرګنده توګه راغلي و.

د هغو مبارکانو ټول ژوند د قرانکریم او احادیثو په ژوره مطالعه او فکر کې تېر شوی.

صحابه کرامو خپل ټول ژوند د رسول الله صلی الله علیه وسلم په ملګرتیا کې تېر کړی او د رسول الله صلی الله علیم وسلم له رحلت وروسته یې هم ژوند په قرانکریم او سنتو کې په فکر تېر شوی. د دغه فکر په نتیجه کې، چې دوی ته کوم فهم او بصیرت الله تعالی ورکړی، د دغه بصیرت په رڼا کې یې یو شمېر اساسي قواعد وضع کړي، چې نورو صحابه کرامو هم ورسره اتفاق کړی دی.

مسئله داسې را پیدا شوه، چې د حضرت عمر رضي الله عنه تر زمانې هم د شرابو څښلو کومه ځانګړې سزا نه وه ټاکل شوې.

د رسول الله صلی الله علیه وسلم په ژوند کې د شرابو څښلو ډېرې کمې پېښې شوې وې یو څو ناپامی یا د شیطان په لمسون شراب څښلي و. د داسې پېښې تورن به چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شول، نو ده مبارک به ورته وفرمایل، چې سزا ورکړئ یا څلوېښت دورې یې ووهئ، ځینو ته یې ترخې خبرې کړې او رخصت کړې یې دي او ځینو ته یې سخت ګواښونه کړي او ځینو ته یې اتیا دورې سزا ورکړې ده، مګر متعینه سزا د دې لپاره نه وه.

یو ورا یې یو سړی په څلورم ځل د شرابو په څښلو ګیر کړی و، نو چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته یې راوست، دا پېښه په حضرت عمر رضي الله عنه ښه ونه لګېده، رسول الله صلی الله علیه وسلم ته یې عرض وکړ، چې دا سړی خو بار بار شراب څښي، نو یې ونه وژنم؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل، چې دا سړی له الله تعالی او د هغه رسول صلی الله علیه وسلم سره مینه لري او له همدې امله د هغه د ګناه او کمزورۍ سرېېره یې هغه وبښلو.

هغه صحابي، چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا خبرې واورېدې، نو بیا یې په ټول عمر شراب ونه څښل.

کله چې د حضرت عمر رضي الله عنه زمانه راغله، نو ډلې ډلې خلک په اسلام کې داخلېدل. ایرانیان، شامیان، مصریان او ګڼ نور. په دغو نوو مسلمانانو کې د ځینو دیني تربیه شوې وه او ځینې لا هم په پوره توګه له دینه نه وو خبر او اوس د دیني تربیې لاندې و، نو په دغه وخت کې د شرابو د څښلو پېښې ډېرې شوې.

حضرت عمر رضي الله عنه صحابه کرام راوغوښتل او مشوره یې ورسره وکړه، چې د شراب څښلو دومره ډېرې پېښې خو د اندېښنې وړ دي او د دې د مخنیوي لپاره باید یو ځانګړی او سخت حد وټاکل شي.

حضرت علي رضي الله عنه وفرمایل: «اذا شرب سکر» کله چې شراب وڅښي، نو دی به نشه وي، «و اذا سکر هذی» او کله چې نشه شي، نو بیا اپلتې ولي «واذا هذی افتری» او کله چې اپلتې وایي، نو به په خلکو تورونه او تهمتونه هم لګوي «واذا افتری حد ثمانین» او کله چې په خلکو تور او تهمت ولګوي، نو اتیا دورې به وهل کیږي، نو د شراب څښونکي سزا باید اتیا دورې شي. نورو صحابه کرامو رضي الله عنهم د حضرت علي رضي الله عنه له دې اجتهاد سره اتفاق وکړ او حضرت عمر رضي الله عنه د شرابو څښلو سزا اتیا دورې وټاکله.

دا یې یو مثال و، چې یو صحابي د نورو صحابه کرامو په مشوره یو قانون وټاکه. د قانون او قاعدې ټاکلو پر مهال باید د اجتهاد پایلې ته وکتل شي، چې پایله او نتیجه به یې څه وي. که نتیجه یې ښه وه، نو کار یې هم ښه دی او که نیجه یې ښه نه وه، نو بیا یې کار او خواري هم بې ځایه ده.

حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په خدمت کې یو سړی حاضر شو او د عدت د مسئلې پوښتنه یې ترې وکړه.

قرانکریم کې د عدت په اړه درې ایاتونه راغلي دي. په یو ایت کې راغلي، که د کومې ښځې مېړه مړ شي، نو هغه باید څلور میاشتې او لس ورځې انتظار وباسي. په بل ایت کې راغلي، چې کومې ښځې ته طلاق ورکړای شو، نو هغه باید درې حیضه انتظار وکړي.

په بل ایت کې راغلي، چې کومه ښځې د حمل په وخت کې طلاق شي، نو هغه به د بچي تر زېږېدو په عدت کې وي. دا درې واړه ایاتونه په جلا جلا پېښو او جلا جلا سورتونو کې نازل شوي.

دغه سړي له حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د داسې یوې ښځې د طلاق مسئلې په اړه پوښتنه کړې وه، چې هم یې د بچي پیدا کیدو وخت نږدې وي او هم یې خاوند مړ وي.

اوس په دوو مختلفو ایتونو کې دوه جلا جلا حکمونه راغلي. د کونډې د عدت حکم په یو ایت کې دی او د بچي د پیدا کېدو حکم په بل ایت کې دی. حضرت عبدالله مسعود رضي الله عنه ورته وفرمایل، چې زه شاهدي ورکوم، چې سورت طلاق له سورت البقرة وروسته نازل شوی دی.

اورېدونکي دا خبرې واورېدې او پوهېدونکي پوه شو، چې د حضرت عبدالله بن مسعود د څرګندونو موخه دا وه، چې مخکینی ایت به د وروستني ایت په رڼا کې څېړل کیږي. د اول ایت د تشریح پر مهال به دوهم ایت په نظر کې نیول کیږي. هېڅکله داسې نه کیږي، چې د قرانکریم یو ایت دې ځانته شرح او فیصله پرې وشي، بلکې د دې ایت مضمون ته به ګورې او راتلونکي ایت د مفهوم او مضمون په رڼا کې به د اول ایت په معنا او حکم ځان پوهوو او صحیح مصداق به یې پیدا کوو.

اوس په ټوله نړۍ کې همدا ټول منلې خبره ده، چې د هر قانون د بند پېژندلو او پر هغه د ځان پوهاوي لپاره دا لازمي خبره ده، چې پر هغو ټولو قوانینو او بندونو ځان پوه کړو، چې په همدې موضوع کې له دې بنده وروسته راغلي وي.

په قانون کې یو عبارت دی، چې قاضیان صاحبان یې د پرېکړو پر مهال ډېر کاروي: «زه دا فیصله کوم، چې فلانی بند دې له فلاني بند سره یو ځای ولوستل شي او دغه دواړه دې د قانون له فلاني بند سره یو ځای ولوستل شي او د دې په رڼا کې دغه حکم دی.»

نن سبا د نړۍ په هر قانون کې دا قاعده عملي کیږي او د دې قاعدې بنسټ عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ایښی دی.

همدا رنګه صحابه کرامو په بېلابېلو وختونو مختلف قواعد ټاکلي دي. عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ته یوه ښځه راغله، چې وېښته یې کم دي یا توی شوي دي او دا یو چېرته تللې وه هلته د یوې ښځې پرې شوي وېښته خرڅېدل، ما هغه وېښته واخیستل او زړه مې دی، چې خپلو وېښتو سره یې پیوند کړم، مګر ځینې خلک وایي، چې دا کار جایز نه دی او تاسې ما ته د الله تعالی د کتاب په رڼا کې پرېکړه راوکړئ، چې څه وکړم. عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ورته وفرمایل، چې دا جایز نه دي. ښځه لاړه او څو ورځې وروسته بیا راغله، ابن مسعود رضي الله ته یې عرض وکړ، چې ما خو د الله تعالی کلام ټول ولوست، مګر هېڅ ځای مې په کې دا ونه موندل، چې څوک دې پردي وېښته په خپلو وېښتانو کې نه پیوند کوي.

ابن مسعود رضي الله عنه دې ښځې ته ځواب ورکړ، که تا په خلاصو سترګو قرانکریم لوستی وای، نو دا حکم به درته ښکاره شوی وای. هغې ښځې ورته وویل، چې تاسې مهرباني وکړئ او دا حکم راوښیئ. ابن مسعود رضي الله ورته وفرمایل، چې الله تعالی په قرانکریم فرمایي. «ما اتاکم الرسول فخذوه و ما نهاکم عنه فانتهوا» رسول الله صلی الله علیه وسلم، چې څه درکوي، هغه واخلئ او له څه مو چې منعه کوي، هغه پرېږدئ، مه یې کوئ او رسول الله صلی الله علیه وسلم پر هغو ښځو لعنت ویلی، چې فلان فلان کارونه کوي؛ په دغو ښځو کې یې هغه ښځې هم یادې کړي، چې د نورو ښځو وېښته په خپلو وېښتو کې پیوند کوي.

عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د ښځې په ذهن کې دا خبره ورکړه، چې قرانکریم کې هېڅ داسې حکم نه شته، چې سنتو سره په ټکر کې وي او همدا رنګه په سنتو کې هم داسې حکم نه شته، چې مستقیما یا بالواسطه په قرانکریم کې نه وي موجود. د پیغمبر علیه السلام سنت د قرانکریم شرحه ده.

کومه مسئله چې سنتو کې په تفصیل بیان شوي وي، اجمال به یې خامخا په قرانکریم کې موجود وي. قرانکریم او سنت یو بل سره تړلي دي. همدا رنګه که د صحابه کرامو اجتهادات راټول کړای شي، نو کېدای شي داسې پېښې سلګونو، بلکې زرګونو ته ورسیږي.

صحابه کرامو د خپل دیني بصیرت او پوهې په برکت داسې اصول او قواعد ټاکلي، چې وروسته تابعینو ترې استفاده کړې او کوم تابعین، چې د صحابه کرامو شاګردان وو، هغوی د صحابه کرامو اجتهادات راټول کړي او هغه یې په لیکلې بڼه ترتیب کړي او دا کار یې نور هم پر مخ بوولی دی. نو دا ویلی شو، چې تابعین هم د اصول فقهې په بنسټ کې مهم رول لري.



# د شهیدانو کاروان

## شهید جعفر (رحمه الله) د جعفر طیار (رضی الله عنه) پسې اقتدا وکړه

عادل حنفی

اتل شهید جعفر رحمه الله د ممتازخان زوی په کال ۱۳۶۱ه ش کې د ننګرهار ولایت د مهمندرې ولسوالۍ د باسول کلي په یوه دینداره او مجاهده کورنۍ کې زیږیدلی دی.

رښتیا هم چې الله ج چاته د رحمت په نظر وګوری په خپل دین باندې ئې مین کړي، نو ځکه الله ج په سورت صف کې فرمایلي دي:

ژباړه: یقینا الله ج محبت کوي هغوکسانو سره چې جنګیږي په لاره د الله ج کې لکه محکمی کلاګانې.

د بختیار شهادت او جهاد د ده کورنۍ لپاره کومه نوی خبره نده،د کوم وخت نه چې روسانو زمونږ په ګران هیواد افغانستان باندې د ظلم او وحشت نه ډک یرغل وکړ،بې شمیره افغانان یې شهیدان،زخمیان،کونډې او په زرهاوو یې د زندان د تور تمبوته واچول او په زرهاوو نور افغانان یې ګاونډیو هیوادونو ته په هجرت مجبور کړل.د دوی کورنۍ هم د روسانو او کمونستانو په ضد جهاد کې پراخه ونډه درلودله چې په دې لړ کې د نوموړي شهید رحمه مشرورور ناصر خان رحمه الله هم د څوکاله مبارزې وروسته د نجیب کمونستي رژیم تر ړنګیدو مخکې په کابل ولایت کې د کمونستانو لخوا په شهادت ورسید(انالله وانا الیه رجعون).

د ناصرخان او داسې په زرهاوو شهیدانو د وینو له برکته روسي ښکیلاک ماتې وخوړله او د اشغال لمن یې ورټوله شوه.

د روسي خرسانو له شکست وروسته ددې پرځای چې د جهاد ګډونوالو د الله ج شکریه ادا کړی وای، د الله جل جلاله نظام او قرآنی شریعت یې نافذ کړي وای،برعکس ډیرو هغه کسانو چې د مجاهدینو په منځ کې یې ځانونه ځای کړي و د مجاهد تر نامه لاندې یې په خیانت شروع وکړه،د الله جل جلاله نه باغیان شول او د زرګونو شهیدانو،زخمیانو،یتیمانو او کونډو په قربانیو یې سودا وکړه.

الله جل جلاله په خپل کتاب کې فرمایې:[لئن شکرتم لازیدنکم ولئن کفرتم ان عذابی لشدید]الایه

ژباړه: لکه چیری تاسو زما شکر ادا کړ خامخا به یې درته په خپل نعمت کې زیاتوالې وکړم او که چیری زما د نعمت کفران(ناشکري) مو وکړه نو بیا زما ((نیول)) ډیرسخت دي.

کله چې د جهاد ټیکه دارانو او تش په نامه مجاهدینو د الله جل جلاله ناشکري وکړه او د ګران هیواد ګوټ ګوټ یې د

مسلمانانو په وینو ورنګاوه همغه و چې د جهاد ثمره ضایع شوه او ملت د یوه بل نه جبرانیدونکي مصیبت سره مخ شو.

ددې ظلمونو او وحشتونو پر ضد په کندهار ولایت کې دامیرالمؤمنین ملامحمدعمر مجاهد حفظه الله ترقیادت لاندې د طالبانو اسلامي تحریک پیل شو او په لنډه موده کې یې د افغانستان مظلوم ولس د ټوپکسالارانو او د جهاد په قربانیو د سودا کوونکو خاینانو له ظلم او وحشت څخه خلاص کړ. او له کلونو-کلونو وروسته یې اسلامي شریعت چې د ټولو مسلمانانو آرمان و پلی کړ.

د نړۍ د ټولو مجاهدینو لپاره افغانستان د جهاد مدرسه او مرکز وګرځید او د نړۍ ډېری مجاهدینو مرحوم امیرالمؤمنین رحمه الله ته د بیعت لاسونو ورکړل.

د نړۍ کفار چې هیڅکله د مسلمانانو اتحاد،اتفاق او پیاوړتیا نشي زغملي، په داسې حال کې چې چې میړنیو افغانانو تازه د روس امپراطورۍ ماتې ورکړې وه،دا ځل صلیبي ائتلاف د امریکي په مشرۍ زمونږ په ګران هیواد افغانستان باندې د شیخ اسامه رحمه الله د نیولو یا وژلو په پلمه یرغل وکړ؛ ډیر شمیر افغانان یې شهیدان او په زرهاوو یې زندانیان کړل او دا لړۍ اوس هم روانه ده.

یو ځل بیا یې مظلوم افغانان د ویر په ټغر کینول .مشران وایې: د زمري په خوله کې به هم همت له لاسه نه ورکوي. د افغانستان غیورو او مجاهدو مسلمانانو یو ځل بیا د صلیبي اشغالګرو په ضد سپیڅلي جهاد او مبارزه شروع کړه،چې ددې ځوانانو څخه یو هم اتل ځوان بختیارجعفر رحمه الله وه،چې پدې وخت کې یې ځوانۍ نوۍ غوټۍ پرانستی وه.دالله جل جلاله مینه وربانديې غالبه شوه او دپالنګ او بستري خوبونو نه یې په ځان باندي حرام کړل نوموړي به تل په دې فکر او هڅه کې ؤ،چې په کوم ځای کې صلیبیانواو دهغوی مزدورانو ته کمین ونیسی او د جهنم ابدي کندي ته یې ولیږي.

شهید جهفر رحمه الله یو اتل،قهرمان او زړور مجاهد ؤ چې خپله بهادري یې صلیبیانو او د هغوی غلامانو ته د جنګ په میدان ښودلی وه، ګڼ شمیر صلیبیان او مرتدین یې وژلي وو.

شهید جعفررحمه الله د هیواد په مختلفو سیموکې خپل جهادي فعالیت ترسره کاوه لکه: د کونړ ولایت او د ننګرهار ولایت په مختلفو ولسوالیو لکه: بټی کوټ، غني خیل، اچین، سپین غر او هسکه مینه ...ډیری وختونه به یې د جلال آباد تورخم په لویه لاره د صلیبیانو او مرتدینو په قطارونو بریدونه کول.

شهید جعفررحمه الله د تورې بوړې جهادي محاذ اتل شهید میا سمیع الدین مجروح رحمه الله د دلګي د سرګروپ په حیث دنده ترسره کوله. نوموړی شهید رحمه الله ته الله جل جلاله ښایسته اخلاق، تقوا او عاجزی ورپه برخه کړی وه. عالمانو او مشرانو ته یې ډیر احترام درلود او په کشرانو به یې شفقت کاوه. د ملګرو ترمینځ به یې د یو عادي مجاهد په حیث ژوند کولو. د عامو مسلمانانو په زړونو کې ئې ځانګړې ځای درلود، چې دا یې په اخلاص او صداقت دلالت کوي.

خوافسوس مرګ د چا زړه ته نه ګوري داځل بیا هم مرګي د تل لپاره مونږ د غم په ټغر کینولو. نوموړی شهید رحمه الله د ډیرو جهادي فعالیتونو وروسته په کال ۱۳۹۳/۷/۲۶ د بټی کوټ ولسوالي د میشواڼو په سیمه کې د صلیبي اشغالګرو لخوا د چاپي پرمهال د چورلکو په واسطه سره د ۱۱ تنو نورو ملګرو د شهادت لوړمقام ته ورسید.(انالله واناالله راجعون)

روح دې ښاد اویاد دې تل وي

که دې غم په ما امبار شي پروا نشته

د ګلونو لاندې ځانګې نه ماتیږي

# سعد بن أبي وقاص رضي الله عنه، د پېغمبر ماما

ليکوال: ذبیح الله مسلم

نوم او نسب يې: د پېغمبر د ماما سعد بن أبي وقاص رضي الله نسب په دې توګه دی: سعد بن أبي وقاص بن مالک بن اهيب بن عبد مناف، چې دی د رسول الله ﷺ د مور بي بي آمنې تره کېږي، له هجرته ۲۳ کاله مخکې په مکه کې وزېږېد.

مور يې حمنة بنت سفيان بن أميه بن عبد شمس بن عبد مناف وه.

اسلام يې: سعد رضي الله عنه د هغو مسلمانانو له ډلې شخه دی، چې څنګه د الله د نازولي پېغمبر محمد ﷺ په پېغمبرۍ خبر شول، پر ته له ځنډه يې هغه رښتونی وګاڼه او اسلام يې قبول کړ، ابوبکر، بي بي خديجه، علي او زيد رضي الله عنه له هغه مخکې وو، سعد په دې اړه وايي: (زه خبر شوم چې محمد ﷺ خلک په پټه اسلام ته رابولي، پوی شوم چې الله راته د خير اراده کړې ده او خوښه يې ده چې د محمد ﷺ په وسيله مې له تيارو څخه ايمان ته راوباسي، چټک ورغلم، په جياد دره کې مې وموند او د ماز ديګر لمونځ يې کړی و، مسلمان شوم او له ما يوازې ابوبکر، علي او زيد رضي الله عنهم مخکې شوي وو، د مسلمانېدو پر مهال يې عمر ۱۷ کاله و، دی وايي، زه په داسې حال کې مسلمان شوم، چې الله لا لمونځونه نه و فرض کړي.

د مسلمانۍ په اړه يې د مور دريځ: سعد رضي الله عنه په دې اړه هم په خپله غږېدلی دی، دی وايي: (مور راباندې سخته ګرانه وه او ډېره نېکي مې ورسره کوله، کله مې چې له اسلامه خبره شوه، خپل ضد يې پيل کړ، ما ته راغله، راته يې وويل: ای سعده! دا دې کوم دين منلی چې د خپل مور او پلار له دينه يې واړولې، په الله قسم يا به ته دا نوی دين پرېږدې او يا به زه تر مرګه خوراک او څښاک ونه کړم، چې بيا دې په ما پسې زړه له غمه وچوي، په خپل دغه کار به سخت پښېمانه شې او ټول عمر به د خلکو له پېغور سره مخ يې). خو سعد چې په پوره عقل او اخلاص يې ايمان لرلی و، د خپلې ګرانې مور دومره کلک دريځ يې ايمان ته ذره زيان هم ونه دراوه، په دې اړه يې لږ سوچ هم ونه کړ، بلکې لکه له پخوا چې دې هر څه ته تيار وي، مور ته يې داسې ځواب ورکړ: (مورجانې، داسې ونه کړې، زه د هيڅ شي په بدل کې له خپله دينه نه اوړم)، مور يې له همدې سره خوراک څښاک پرېښودل او چې يو څو ورځې يې همداسې تېرې کړې، بدن يې ډنګر شو او له زوره ولوېده، کله چې سعد وليده، د خپل دين په اړه يې له تېر وار سختې خبرې ورته وکړې، (مورجانې، سره له دې چې له تا سره کلکه مينه لرم، خو له تا ډېر له الله او رسول سره مينه لرم، په الله قسم، که ستا زر ساګانې وي او يوه په بله پسې وځي، زه به دا خپل دين پرېنږدم)، مور يې چې کله د سعد دغه ثابت قدمي وليده، سره له دې چې زړه يې نه غوښتل، خوراک څښاک يې پيل کړ، او وروسته يې په اړه د لقمان سورت ۱۴م او ۱۵م آيتونه نازل شو.

ژباړه يې داسې ده: (موږ انسان ته له خپل مور او پلار سره د نېکۍ کولو امر کړی، مور ګرځاوه ده لره په سستۍ سره د بلې سستۍ له پاسه، او جلا کول د ده (له تي نه) په دوه کلونو کې دي، –او ويلي دي موږ انسان ته– چې شکر کوه زما او د خپل مور او پلار، يوازې ما ته د انسانانو راګرځېدل دي، او که دا مور او پلار په تا کوښښ وکړي، چې تا له ما سره د هغه څه شرک کوونکی وګرځوي، چې ته په هغې علم نه لرې، نو د دوی اطاعت مه کوه، او په دنيا کې ورسره غوره معامله وکړه، او په دين کې د هغه چا لاره ونيسه چې ما ته راګرځېدلي دي، بيا يوازې ما ته ستاسو راتګ دی، نو په هغه څه به مو خبر کړم، چې تاسو کول.(

هجرت يې: کله چې په مکه مکرمه کې پر مسلمانانو د مشرکينو ظلمونه ډېر شول، هغوی له رسول الله ﷺ څخه وغوښتل، د هجرت اجازه ورته وکړي، په دې معنی چې اوس مکه پرېږدي، ځکه د قتال اجازه نه شته، مسلمانان کمزوري دي او مشرکان بې حده ظالم دي، له خپل دينه د مسلمانانو د اړولو لپاره هغوی ته سخت عذابونه ورکوي، خو دا چې

مسلمانان خپل دين نه پرېږدي، نو له ظلمه د بچ کېدو په خاطر مکه پرېږدي، څو بل داسې ځای کې واوسېږي چې هلته بېرته له يوه زورور موقفه راستانه شي او د الله دين خپور کړي.

په همدې لړ کې سعد رضي الله عنه هم د نورو مسلمانانو په څېر مدينې ته ولاړ، مسلم په دې اړه په خپل صحيح کې له براء رضي الله عنه روايت کړی دی.

**د عشره مبشره له ډلې څخه و:** د ګران پيغمبر ﷺ په ملګرو کې لس تنه په عشره مبشره مشهور دي، دا هغه صحابه دي، چې په خپل ژوند کې پرې د الله د رسول له لوري د جنتي کېدو زېری شوی دی، په دوی کې څلور نبوي خليفه ګڼان وو، او له دې ډلې يو هم سعد رضي الله عنه دی، امام احمد بن حنبل رحمه الله په خپل مسند کې په دې اړه يو حديث روايت کړی، چې د الله رسول ﷺ وفرمايل: څوک چې له دې دروازې څخه لومړی داخل شو، هغه جنتي سړی دی، دغه لومړی کس سعد بن أبي وقاص و.

**د سعد دعا قبلېدونکې وه:** د سعد په اړه کتابونه ليکي، چې د هغه ويشتل خطا نه تلل، کله به يې چې د جهاد پر مهال پر کفارو غشي وورول، بچ به يې نه خوړ، همدا راز چې له الله جل جلاله به يې کومه دعا وکړه، الله به قبولوله، صحابه وايي، دا ځکه چې د دواړو جهانو سردار ﷺ ورته دعا کړې وه، «ای الله! نښه يې سمه کړې او دعا يې قبوله کړې».
ابن عساکر د تاريخ دمشق په ۲۰م جلد ۳۴۶م مخ کې ليکي: (سعد يوه ورځ يو تن وليد، چې طلحه، علي او زبير رضي الله عنهم ته شکنځل کول، سعد هغه منع کړ، خو دی غلی نه شو، سعد ورته وويل، ښېرې درته کوم!، هغه کس وويل: (ته خو داسې ګواښ کوې لکه پيغمبر چې يې)، سعد ولاړ، اودس يې وکړ او دوه رکعته لمونځ يې ادا کړ، وروسته يې لاسونه پورته کړل او دعا يې وکړه، چې الله! دغه تن داسې خلکو ته شکنځل وکړي، چې تا ته يې حال مالوم دی، الله دې د خلکو لپاره پند او نښه وګرځوه، لږ وخت نه و تېر، چې له يوه کوره اوښه راووته، هيڅ شي يې مخه نه شوه نيولی، د خلکو په منځ کې يې لار وکړه او تر دغه سړي ورسېده، له پښو يې ونيو او تر هغه يې راښکوده او واهه، تر څو يې چې ساه ووته.

**سعد د اسلام په خاطر له هر چا مخکې وينه توی کړه:** د اسلام په راتګ سره د مکې د مسلمانانو او مشرکينو رشته وشکېده، مسلمانانو لکه څنګه چې د قران کريم حکم دی، هغه خلک پردي بلل، چې اسلام يې نه مانه او د پيغمبر ﷺ دښمني يې کوله، چا دا نه ويل چې دا مې ورور، يا پلار يا هم بل څه خپلوان دی، نو بايد په اړه يې دريځ نرم او اساني وشي، بلکې د مسلمانانو يوه وروروولي او يو دښمن و، خو له دې امله چې لا جهاد نه و فرض او د جګړې اجازه نه وه شوې، مسلمانانو پر مشرکينو ستر يا کوچنی بريد نه کاوه، کله چې لمونځ فرض شو، مسلمانانو د مکې د مشرکينو له وېرې په لرې لرې ځايو کې په پټه ادا کاوه، سعد رضي الله عنه يوه ورځ له څو نورو ملګرو سره د مکې يوې درې ته ووت، هلته په لمانځه ولاړ وو، چې مشرکين پرې راغلل، هغوی د مسلمانانو دغه کار بد وګاڼه او بريد يې پرې وکړ، سعد رضي الله عنه چې په دغه وخت کې ښه ځوان هم و، غصه يې راوپارېده، خوا ته د اوښ د ژامې هډ پروت و، هغه يې راپورته کړ او يو مشرک يې په سر پرې وواهه، د مشرک له سره وينې روانې شوې او دا لومړۍ وينه وه چې له اسلامه په دفاع کې توی کړل شوه.

**په اسلام کې لومړی غشی سعد وورولی:** د الله محبوب پيغمبر حجاز ته د عبيده بن الحارث رضي الله عنه په سريه کې سعد هم واستاوه، دوی هلته له مشرکينو سره مخ شو، نښته ونه شوه، خو سعد د کفارو پر لور يو غشی وورولی و، چې همدا په اسلام کې لومړی وار شوی غشی دی.

**د پيغمبر پهره دار:** بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي، نبي عليه السلام يوه شپه وېښ پاتې شو، کله چې مدينې ته ورسېد، ويې ويل، کاش چې نن شپه مې له ملګرو يو نېک سړی څوکۍ وکړي، په دې وخت کې موږ د سلام بږغ واورېد، د الله رسول وفرمايل، څوک يې؟ ځواب وشو، زه يم سعد بن ابي وقاص، راغلم چې ساتنه دې وکړم ای د الله رسوله!، او پيغمبر ويده شو. بخاري ۲۸۸۵ او مسلم ۴/ ۱۸۷۵

**د سعد غزاګانې:** سعد رضي الله عنه په ګڼو غزاګونو کې ګډون کړی، بخاري په ۷/ ۳۲۶ او ۲۷ کې په هغو صحابه و کې ياد کړی، چې په بدر کې يې ګډون کړی و، ابن الجوزي په تلقيح فهوم أهل البصر ۱۱۸ مخ کې ليکي، چې سعد په ټولو غزاګانو کې ګډون کړی، ابن الأثير د أسد الغابة په ۲/ ۲۹۰ مخ کې ليکي، چې سعد په بدر، احد، خندق او ټولو غزاګانو کې ګډ و او د احد په ورځ يې ستر ازميښت ورکړ.

د احد په غزا کې يې څه وکړل: غيرتي او نه ماتېدونکي سعد د احد په غزا کې هم خپله کارنامه وښوده، کله چې جګړه ونښته، په لومړي وخت کې صحابه رضي الله عنهم تيت پرک شول، د پيغمبر ﷺ په شاوخوا کې لږ کسان پاتې شو، سعد کلک ولاړ و او جنګېده، کله چې يې نبي کريم ﷺ غشي وورول وليدل، ورته يې وويل: (اى سعده! وله، مور او پلار مې درنه قربان شه). سعد د ژوند په اوږدو کې په دې جمله وياړېده او ويل يې: (رسول الله ﷺ هيڅوا ته زما په څېر دعا نه ده کړې)، دا چې مور او پلار دواړه يې ترې قربانول.

سعد د پيغمبر ﷺ له وفات وروسته د نبوي خليفه ګانو په وخت کې هم په سترو جنګونو کې برخه اخستې ده، چې په هغو کې يو د قادسيې فتح وه.

د لښکر مشري: د رسول اکرم ﷺ او لومړي خليفه ابوبکر له وفات وروسته د حضرت عمر د خلافت پر مهال کله چې فتوحات ډېر شول، له فارسيانو سره د مسلمانانو جنګونه راغلل، د رستم پهلوان نوم تر ننه يادېږي، دى له همغه وخت د کتابونو په ليکو کې پاتې دى، له دوى سره په جګړه کې امير المومنين عمر رضي الله عنه وغوښتل چې د لښکر مشري په خپله وکړي، خو د نورو اصحابو دا رايه وه، چې دا مشري بل چا ته ورکړي، عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه د سعد مشوره ورکړه، په همده سلا وشوه او سعد د مسلمانانو د هغه لښکر مشري په غاړه واخسته، چې فارسيان يې د قادسيې په ميدان مات کړل او بريا الله مسلمانانو ته ورکړه، په دې نښته کې بې شمېره کفار او د فارسيانو يو لوى پهلوان رستم ووژل شول، مسلمانان له دجلې تېر شول، مداين ته ورسېدل او هغه يې ونيو، سعد د کسرى ماڼۍ ته ننوت، هلته يې د شکرانې په توګه الله جل جلاله ته ۸ رکعته لمونځ ادا کړ، په دغې فتح سره الله جل جلاله د خپل ګران استازي يوه بله معجزه هم د هغه له مرګ وروسته ثابته کړه، د الله رسول د خپل ژوند پر مهال دا وړاندوينه کړې وه، چې د مسلمانانو لښکر به د کسرى ماڼۍ هم فتح کوي، سعد کسرى فتح کړه.

سعد په دې جګړه کې د جګړې د ډګر په توګه د قادسيې ميدان غوره کول يوه ستره کارنامه وکړه، په دې پرېکړې پورې څو مهمې خبرې تړلې وې، يوه دا چې قادسيه د يوه ستر خندق او يو غره تر منځ و، چې دې کار يې لښکر تر ډېره ساته، بل دا چې په دې ځاى کې داسې طبيعي خنډ نن و، چې د بېرته راټولېدو په موخه د ده لښکريانو د راستنېدو پر وخت د هغوى مخه ونيسي او بل دا چې فارسيان يې له يوه طبيعي خنډ سره مخ کړي وو، چې هغه د فرات سيند و.

په جګړه کې هغه نورې غوره پرېکړې هم وکړې، د جګړې د پيل وخت يې ماسپخين مهال کړ، چې لمر د جنګيالو له سترګو اوښتى و، د جګړې په اوږدو کې يې خپل ټول ځواکونه څارل او چې به چېرته اړتيا وليدل شوه، تازه دمه جنګيالي به يې واستول، بل لور ته يې د شپې د عملياتو لپاره نظم نيولى و، چې همدې کار جګړه يوه پرېکنده پړاو ته داخله کړه.

سعد وروسته د عمر رضي الله د خلافت پر مهال د عراق امير هم پاتې شو، هغه هلته ډېر کار پيل کړ او ودانۍ يې وکړې، خو د کوفې خلک چې په بغاوت مشهور و، امير المومنين ته يې ګيله وکړه، چې سعد لمونځ ښه نه کوي، خو سعد خندل، چې زه د اسلام د پيغمبر په څېر لمونځ ورته کوم، لومړي دوه رکعته اوږده او وروستي دوه لنډ کوم، عمر رضي الله عنه دى مدينې ته وروغوښت، سعد ژر ورغى، کله يې چې بېرته کوفې ته لېږه، سعد وويل: (ايا داسې خلکو ته د ورګرځېدو امر راته کوې، چې هغوى ګمان کوي، زه لمونځ ښه نه کوم؟)، سعد غوښتل په مدينه کې پاتې شي.

سعد د عمر رضي الله عنه د شورى غړى و: کله چې د اسلام د دوهم خليفه عمر رضي الله عنه د وفات وخت شو، د نوي خليفه د ټاکلو لپاره يې شپږ تنو ته خبره پرېښوده، په دوى کې يو سعد و، عمر د وفات پر وخت وويل، که سعد دا مسؤوليت پر غاړه واخست خو ښه ده، که بل چا واخست، له سعده دې مرسته وغواړي.

وفات يې: سعد رضي الله عنه په ۵۵ هجري کال له مدينې منورې څخه نږدې ۵ ميله لرې په العقيق نومې سيمه کې په خپل کور کې وفات شو او عمر يې له ۸۰ کلو اوښتى و، په مهاجرينو کې دى وروستى سړى و، چې وفات شو، جنازه يې په جنت البقيع هديره کې خاورو ته وسپارل شوه. انا لله وانا اليه راجعون

# د علم نافع علامات




ليکوال: زرخان احمدزی

علم الله تعالی ته یو له هغه محبوب ترین اعمالو څخه دی، چې اول امر یې موږ ته په إقرء سره کړی دی او هغه کسان چې علم لري هغو کسانو سره یې نه دي برابر کړي، چې علم نه لري . الله تعالی فرمایي :{ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ}.

اوس سوال دا دی، چې د علم نافع علامات څه دي؟ او نفع ورکوونکی علم څه ته وایي؟ د دې په اړه نبي علیه السلام موږ ته دعا ښودلې ده چې : اللهُمّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عِلمٍ لَا يَنْفَعُ.

علامات:

لومړی : که چېرته د یو کس زړه علم سره نېکو کارونو ته میلان پیدا کړي، نو دا علم نافع ګڼل کېږي.

که بالفرض چېرته یو عالم څخه ګناه وشي، نو الله ته بې ژړا ژړا او معافی غوښتلو څخه سکون نه مومي.

دوهم : د علم په حاصلولو سره د انسان په زړه کې له الله تعالی څخه وېره پیدا کیږي،

الله تعالی فرمايي:{إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ}.

## په علم کې اضافت څنګه راځي؟

په علم کې اضافت په دوه طريقو سره راتلی شي. لومړی د عمل په ذریعې سره. هغه چې د عمل په ذریعې سره په کې زیادت راځي نبی علیه السلام فرمایي : مَنْ عَمِلَ بِمَا عَلِمَ وَرّثَهُ اللهُ تَعَالى عِلمَ مَا لمْ يَعْلَم.

څوک چې په هغه علم عمل وکړي چې ده حاصل کړی دی، الله تعالی به ورته د هغه څه علم ورکړي، چې ده ته یې علم نه وي.

دوهم: د تقوی په ذریعې سره

له ګناهونو څخه ځان ساتل او تقوی اختیارول په علم کې د اضافت سبب ګرځي. چې دلیل یې :{ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَيُعَلِّمُكُمُ اللَّهُ}.

د علم حاصلول په دوه طریقو سره دی:

لومړی: په ذهانت.

دلته بیا خبره دا ده؛ که چېرته یو کس قواعد، صرف او نحو ټول زده کړي، چې عبارات لولي نو د هغې مفهوم د ده په ذهن کې راځي. لکن کوم علم چې صرف د ذهانت په طریقې سره راځي د هغې بنیاد نه وي.

د امام رباني مجدد الف ثاني رحمه الله په زمانه کې دوه ورونه وو، چې یو یې ابوالفضل او بل فیض نومېده، دوی دوی ډېر ذهینان وو، دومره تېز ذهنه وو، چې فیض به یې خبره په لومړی ځل یادوله او ابوالفضل په دوهم ځل.

په فارسي ژبه کې یې د قرآن کریم تفسیر بغیر له نقطو څخه لیکلی دی چې سواطع الهام نومیږي.

دا چې د دوی علم صرف د ذهانت په طریقې سره و، نو وخت آخر کې یې د وخت بادشاه ته تعظیمي سجده وکړله.

دوهم: په عبادت.

مطلب په علم عمل کول او تقوی اختیارول دي، نو څوک چې په علم زیات عمل او تقوی ولري الله تعالی به هغه ته

ورزده کړي چې له ده سره یې علم نه و او دا علم به همېشه له ده سره وي.

بل دا چې فاسق طالب العلم عبارتونه یادولی شي، لکن دا یې نه وي زده چې په کومه موقع له ما څخه زما رب څه غواړي؟ له دې څخه دا جوتیږي چې دا کس علم نه لري، بلکې صرف معلومات لري.

باید چې طالب العلم د فسق و فجور، بد نظري، د غیر محرمو سره محبت دې شیانو څخه ځان وساتي.

بله دا چې علم صرف موږ ته د خبرو کولو هغه طریقه راښيي، خو عمل زموږ زړه پورې اړه لري.

بله دا چې ژبه چلیږي د دماغو په علم او زړه چلیږي د اعضاو په علم.

علم څرنګه محفوظ وساتو؟

هغه علم محفوظ ساتل کېدای شي په کوم چې انسان عمل وکړي.

علم د ښکار مثال لري او په هغې عمل کول د ښکار د بندي کېدلو مثال لري، نو علم د عمل په قفس کې اچول په کار دي او بیا هغه عمل د شریعت په مطابق په کار دی.

که موږ یو خط چېرته ولېږو او په هغې د پوستې آفس مهر (ټاپه) نه وي لږېدلې نو آیا هغه خپل منزل پورې رسیدلی شي؟ نه.

چې له ټاپې څخه بغیر یو خط خپل منزل ته نه شي رسېدلی، نو همداسې د سنتو له ټاپې څخه بغیر د بنده عمل د الله د رضا والي منزل ته نه شي رسېدلی.

څه چې موږ لولو، نو هغې ته باید عملي بڼه هم ورکړو او عمل څخه مطلب د الله رضا ده.

## دغوسې زغمل

**معاذ بن انس الجهني رضي الله عنه وايي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: څوک چې کولی شي غوسه عملي کړي خو بیا هم غوسه وزغمي، الله به یې د قیامت په ورځ د ټولو مخلوقاتو په مخکې راوغواړي، په حورو کې به اختیار ورکړي او چې کومې یې خوښې وي هغه به ورته نکاح کړي. عن معاذ بن أنس الجهني رضي الله عنه أن النبي صلى الله عليه وسلم قال: من كظم غيظاً وهو قادر على أن ينفذه دعاه الله على رؤوس الخلائق يوم القيامة حتى يخيره من الحور العين فيزوجه منها ما شاء. أخرجه الترمذي 4/ 372 برقم 2021.**



# د یوویشتمې پېړۍ اتل

لیکوال: طارق بدر

تخنیکر سټوډیو ته د ننوتلو اشاره راته وکړه، په مخامخ لویه هنداره کې مې لونګۍ سمه کړه، ږیره مې بیا ږمنځ کړه، دغاړې کالر مې سم کړ، څادر مې په اوږه کړ، واسکټ مې ژر بدل کړ، خو واسکټ خوند نه کاوه، تور له سپینو جاموسره ښه ښکارېده، سټوډیو ته ننوتم، مېز ته نېغ ودرېدم، لاس کې مې تشې ورقې په مخته ایښې مېز کېښودې، په مخامخ لوی سکرین کې مې سترګې وګنډلې، له موضوع خبروم، ځکه خو مې نن خپلې خپرونې ته را بېړه وه، نږدې دوه میاشتې مې یې خبرتیاوې خپرولې، فیسبوک، ټویټر، راډیو او تلویزون کې یې لا له وړاندې اعلانونه خپاره شوي وو، خلکو به پرلپسې زنګونه راته وهل: بدر صاحب!

«د یوویشتمې پېړۍ اتل» خپرونې ته په تمه یو، اعلانونه یې خوند کوي .ما به یوازې مننې او کوروداني ورته ویل، «د یوویشتمې پېړۍ اتل» خپرونه له ملي تلویزونه زما په کوربه توب نوې شروع کېدله او په اعلانونو کې مې یې ټینګار کړی و، چې دې خپرونه کې به د «عصرعمر» له خپلو خلکو سره په ژوندۍ بڼه خبرې کوي، د بریا رازونه به وایي، د سختیو کیسې به کوي او د یوویشتمې پېړۍ اتل د لقب په اړه به یې احساسات پوښتو...

تخنیکر اشاره راته وکړه، چې ځان اماده کړم، دوه دقیقې وروسته خپرونه شروع کېږي، ده په ماوس کلیک وکړ او په مخامخ تلویزون کې چې له لوي سکرین سره څنګه ته ایښې و، سپین بیرغ ورو – ورو په رپېدو شو، نرمه ترانه ورسره ورو ورو لوړېده:

سر پورته کوه د خپلواکۍ بیرغه ورپه - ځار موکړې له تا تنکۍ ځوانۍ بیرغه ورپه ځار مو کړې له تا تنکۍ ځوانۍ بیرغه ورپه!

وروسته په سکرین زما د خپرونې ځانګړې زیګنال پیل شو، عمري سربښندونکي له بمونو ډک موټرونه د کفارو په پنډ غالو ور ننباسې لوخړې پورته شي د تکبیر کرېږه وشي ورسره جوخت، د لمبو او لوخړو په منځ کې د امیرالمومنین تیت انځور ښکاره شي چې په څادر کې نغښتي د طالبانو په بدرګه د کابل ښار کې روان وي، ترانه لوړه شي:

یې د عصر خلیل، یې د عصر عمر- موږه لر یو که بر، یو ستا پوځ ستا لښکرد ترانې په منځ کې زما غږ د امیرالمومنین له تیت انځور سره را لوړ شي:

«د یوویشتمې پېړۍ اتل!

په دې خپرونه کې د یوویشتم قرن، بې نمونې مشران درپېژنو، د باروتي ځوانانو وروستي غږونه اورو. د دوی د کورنیو احساسات ګورو، او خپل موجود نسل ته د ناټو شرموونکي ماتې مخې ته ږدو!

«د یوویشتمې پېړۍ اتل!

د ترانې له ټیټېدو سره د کمرو ګروپونه ولګېدل، د لونګۍ شمله مې له شا نه رامخکې کړه، په مخامخ لوي سکرین مې لیکلي متن پیل کړ:

د ملي تلویزون درنو لیدونکو السلام علیکم ورحمه الله وبرکاته !نحمده و نصلي علي رسوله الکریم!

د یوویشتمې پېړۍ اتل، لومړي خپرونه مو د یوویشتم قرن

اوسپنيز انسان، د زړونو فاتح او د دې عصر عمر ته ځانګړې ده!
ګرانو لیدونکو، په دې خپرونه کې په ژوندۍ بڼه د عالیقد امیر المومنین تر کوره ځو، له دوی سره خبرې کوو، د ناټو پر وړاندې د مبارزې سترې ترې پوښتو، د زغم، ترحم او مشرۍ د بریا رازونه ترې پوښتو، د دې ستر انسان پر اطاعت ویاړو، ستاسې انتظار پای ته رسوو او دوه دقیقې وروسته به مو د عالیقدر امیرالمومنین له کوره په ژوندۍ بڼه ستاسې په چوپړ کې یو!

د سکایپ غږ مې را وینښ کړم، موډیم مې کمپیوټر کې بند و، سکایپ کې انلاین پاتې وم، د ملګري زنګ مې و، د دروند انسان، د بې جوړې مجاهد، د ستر رهبر عالیقدر امیر المومنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله د وفات، سوی پیغام یې راسره شریک کړ، زما خوب نیمګړی پاتې شو!
رب العلمین دې د عالیقدر امیرالمومنین د یووښتمې پېړۍ باروتي سربښندونکي همداسې سره متحد لري، او د ستر رهبر ټولې قربانۍ دې قبوله شي.

## لاندې شيان ولې له موږ او تاسو څخه ضايع کيږي؟

صداقت، م

۱ ـزموږ پوهه او علم: له هغه نه د ګټې نه اخيستلو په وجه باندې ضايع کوو.

۲ ـزموږ اعمال: د غير مخلصانه کارونه په کولو سره يې ضايع کوو.

۳ـ زموږ شتمنی: په هغه شيانو ضايع کوو چې زموږ لپاره اجر (د آخرت لپاره ګټه) نه لري. موږ خپلې پيسې، موقف او واک پر هغو شيانو ضايع کوو چې نه په دې دنيا او نه په آخرت کې موږ ته ګټه رسوي.

۴ ـزموږ زړونه: د الله د محبت په نشتوالي، د هغه په لور د تلوسې په نه درلودلو او د هوساينې او د آرامي په نشتوالي يې ضايع کوو. او د دې ټولو پر ځای باندې زموږ په زړونو کې نورو بېځايه شيانو يا خلکو ځای نيولی.

۵ ـزموږ وجود: د الله د عبادت او د هغه په لاره کې د خدمت په نه کولو سره ضايع کوو.

۶ ـزموږ مينه: زموږ احساساتي مينه په غلطه لار روانه ده، د الله په لوري نه ده روانه، بلکه په نورو شيانو/خلکو پسې روانه ده او بېشکه چې موږ هغه ضايع کوو.

۷ ـزموږ وخت: د دې لپاره ضايع کيږي چې سمه ګټه ترې نه اخلو، د دې لپاره چې پخوانۍ دوره مو جبران کړې وې نو بايد صحيح او اخلاقي کارونه سرته ورسوو.

۸ ـزموږ عقل او فکر: پر هغه شيانو باندې ضايع کوو چې قطعاً فايده نه لري تفکر، غور او فکر ته ګټه نه لري، ټولنې او خلکو ته تاوان رسوي.

۹ ـزموږ خدمت او چوپړ: د هغه شي يا سړي لپاره ضايع کوو چې هغه موږ الله ته نه نږدې کوي او نه هم په دنيا کې موږ ته ګټه رسوي.

۱۰ـ زموږ ذکر او ياد: په دې ضايع کيږي چې هيڅ کله د الله د په ياد کې نه کيږي او يا هم زموږ په زړه باندې هيڅ اغيزه نه کوي.



# د مسجد له حجرې د اسلامي نړۍ تر افقه!

لیکوال: ابومحمد فاتح

د کمونېزم له ماتې او د افغانانو له بري وروسته د نړۍ د مسلمانانو د امیدونو غوټۍ په غوړېدو وې، چې هغو سترو قایدینو چې تر قیادت لاندې یې زرګونه ځوانان شهیدان شوي وو، د قدرت او چوکۍ په سر له یو بل سره لاس او ګرېوان شول.

د نړۍ د مسلمانانو ارزوګانې له خاورو سره خاورې شوې، په هېواد کې داسې حالات رامنځ ته شو، چې هیچا ته د زغم وړ نه وو .د جهاد ثمره په کورني او د قدرت په سر په خونړي جنګ بدله شوه .د روس په مقابل کې جنګېدونکي مجاهدین یوه ډله شهیدان شول، بله ډله قدرت ته ورسېدل او بله ډله د انقلاب له بریا وروسته د مجاهدینو او رهبرانو کړنو مایوسه کړل او په خپلو کورونو کېناستل یا د درس او تدریس چاره یې غوره کړه، بالاخره داسې حالات راغلل، چې غلاوې، قتلونه، چور تالان او ظلم زور خپل اوج ته ورسېد، تر دې چې د پټمنو پېغلو عفتونه لوټ شول او د بچه بازۍ بازار ګرم شو.

د تیارو په دې بهیر کې د مسجد له حجرې نه یو ځرک را ښکاره شو، ملا محمد عمر اخند د نبوي وارثینو په بدرګه د شر او فساد پر خلاف د جهاد نعره پورته کړه، چې کړېدلیو او ځورېدلیو مسلمانانو ورته لبیک ووایه .

دا سپېڅلی کاروان چې له حجرې نه را وتلی و ډېر په ځغاسته یې د فتحو پړاوونه لنډ کړل، په هر کلي او ښار کې ورته مخلصو مسلمانانو هرکلی ووایه او د اسلامي افغانستان په غېږ کې یې یو ځل بیا د شریعت جنډه ښخه کړه .

د عثماني خلافت له پرزېدو وروسته د نړۍ د نا امیده مسلمانانو په زړو کې یو ځل بیا د رڼا بځرکي په ځپو شول، د نړۍ د محکومو مسلمانانو د هیلو نېلي بیا د خوښیو په اووم اسمان کې وځغلېدل د افغانستان غیرتي خاورې وروسته له پېړیو یو ځل بیا په خپله غېږ کې د اسلامي خلافت د یادګارو ځرکونه ولیدل، د شریعت سپاهیانو د خراسان له غېږې بیا نړۍ ته د جهاد، شهادت او شریعت د ادبیاتو درس ورکړ، د اسلام ورک او هېرشوي اصطلاحات لکه: امیرالمؤمنین، خلافت، بیعت، امارت، حدود یو ځل بیا د اریانا په سینه کې په ځپو شول .په لږ وخت کې داسې د عدل او امن نظام پلی شو چې د وخت د عدل او امنیت ماهرین ورته ګوته پر غاښ پاتې شول .دا د یو انسان کامل ایمان، متین عزم، ټېنګه اراده او مست احساس وو، چې د مسجد له زړې حجرې نه را پورته شو او په کم وخت کې یې د خراسان په غېږ کې د شریعت توغ رپاند کړ .د پامیر له څوکې یې مایوسو، دردېدلیو او غمځپلیو مسلمانانو ته د حریت زېری ورکړ، د دې کاروان سپېڅلتیا، شریعت ته پابندي او التزام چې نړیوالو ولید، بیا تر افغانستان پورې محدود پاتې نه شو، د عمر له عزم او ارادې سره نړۍ په غورځنګ شوه او هر چا د باطل پر خلاف د حق نعره پورته کړه .په ډېر شوق او ذوق سره یې د شلم قرن اتل ته د بیعت لاسونه را اوږده کړل، د ټولې اسلامي نړۍ جهادي غورځنګونو له امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد سره بیعت اعلان کړ نو ملا صاحب د اسلامي نړۍ پر افق وځلېد .د نړۍ پر مخ چې د کپیټالېزم تیارې په خپرېدو وې او د ټولې نړۍ تسخیر یې غوښت، اسلامي امارت ورته سم د خطر زنګ شو د دیموکراسۍ پیروانو بانې او توطئې جوړې کړې او زموږ مکرم مېلمه شیخ اسامه رحمه الله یې وغوښت محترم ملا صاحب یې

دا شومه غوښتنه په نره رد کړه او اسامه يې د اسلام د مېلمه پالنې له اصولو سره سم وساته کفارو ته بانه په لاس ورغله امريکې نړيوال ائتلاف جوړ کړ بوش د صليبي جنګ اعلان وکړ او په افغانستان يې ناروا پوځي يرغل وکړ .زموږ غيرتي اميرالمؤمنين د غرونو په طرف لاړ او خپلې عمري تورې ته يې لاس کړ، د اشغالګرو په ضد يې د جهاد اعلان وکړ او څوارلس کاله يې دا ستړې او له ستونزو ډکه معرکه پر مخ بوتله، د مجاهدينو صف يې متحد وساته، نړيوالو فکر کاوه چې امريکا د نړۍ باداره کېدونکې ده خو ملاصاحب د نړيوالو د خوب تعبير غلط ثابت کړ مغروره ناټو يې په ګونډو کړه .له دې ټولو سختيو او مشکلاتو ګاللو وروسته د روس او امريکې له ماتولو وروسته زموږ ګران رهبر اميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله د ابد په لوري وکوچېد، خو يو سپېڅلی نړيوال اسلامي فکر او روښانه لار يې مسلمانانو ته پرېښوده .په وفات يې مسلمانان سخت غمجن شول د فراق اوښکې يې تويې کړې نړيوالو تاريخ پوهانو او علماوو د ده په باره کې ډېرې ليکنې وکړې چې د اسلامي نړۍ ستر عالم، ليکوال او مصنف سليمان العلوان يې په اړه ليکي :د تاريخي کتابونو ډېرې پاڼې مې واړولې مګر له ملا محمد عمر مجاهد پرته بل داسې حاکم مې په کې پيدا نه کړ، چې پاچاهي يې د دين له سره ځاره کړې وي او همدارنګه مصری تاريخ پوه او ليکوال مصطفی ابو الوليد يې په اړه ليکي :چې شپږم راشد خليفه ملا محمد عمر هم وفات شو .وروسته خپل غم په ډېرو دردناکو الفاظو سره شريکوي .

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ الحَضْرَمِيُّ قَالَ: نا مَحْفُوظُ بْنُ بَحْرٍ الأَنْطَاكِيُّ قَالَ: ثَنَا الوَلِيدُ بْنُ عَبْدِ الوَاحِدِ التَّمِيمِيُّ، عَنِ ابْنِ لَهِيعَةَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ثَلَاثٌ مُهْلِكَاتٌ، وَثَلَاثٌ مُنَجِّيَاتٌ، وَثَلَاثٌ كَفَّارَاتٌ، وَثَلَاثٌ دَرَجَاتٌ. فَأَمَّا المُهْلِكَاتُ: فَشُحٌّ مُطَاعٌ، وَهَوًى مُتَّبَعٌ، وَإِعْجَابُ المَرْءِ بِنَفْسِهِ. وَأَمَّا المُنَجِّيَاتُ: فَالعَدْلُ فِي الغَضَبِ، وَالرِّضَى، وَالقَصْدُ فِي الفَقْرِ، وَالغِنَى، وَخَشْيَةُ اللهِ فِي السِّرِّ، وَالعَلَانِيَةِ. وَأَمَّا الكَفَّارَاتُ: فَانْتِظَارُ الصَّلَاةِ بَعْدَ الصَّلَاةِ، وَإِسْبَاغُ الوُضُوءِ فِي السَّبَرَاتِ، وَنَقْلُ الأَقْدَامِ إِلَى الجَمَاعَاتِ. وَأَمَّا الدَّرَجَاتُ: فَإِطْعَامُ الطَّعَامِ، وَإِفْشَاءُ السَّلَامِ، وَصَلَاةٌ بِاللَّيْلِ، وَالنَّاسُ نِيَامٌ.

ژباړه:عبدالله بن عمر رضي الله عنه وايي: رسول الله صلي الله عليه و سلم ويلي دي: درې هلاکوونکي شيان دي، درې نجات ورکوونکي شيان دي ، درې ګناهونه تويوونکي شيان دي ، درې درجې لوړوونکي شيان دي. درې هلاکوونکي شيان دا دي: داسې بخل چې خلک يې پيروي کوي ، د نفس دغوښتنو پيروي، ځان خوښونه او غرور . درې نجات ورکوونکي شيان دادي: په غوسه او خوشالي کې عدل کول ، په غريبي اوشتمني کې منځلاريتوب ، په پټه او ښکاره له الله نه ويره . درې ګناهونه تويوونکي شيان دا دي: له لمانځه وروسته دبل لمانځه انتظار ، په يخ کې په پوره توګه اودس کول ، دجمعولمنځونو ته ګامونه اخيستل. درې درجې لوړوونکي شيان دا دي: مسکينانو ته ډوډۍ ورکول ، سلام کول زياتول ، چې خلک ويده وي دشپې لمونځ کول.

# وقتیکه کانون علمی کشور جایش را به مراسم تعزیت امیرالمؤمنین می دهد



نویسنده: نجیب الله "بدخشی"

وقتی محصل تبر آزادی بدست گرفت و شمشیر برانش جولان کرد. بگذار سلول ها زندان انحصاری برای ایشان گردد از یک پیکر مطهر و خون آلود این توده ای مبارز میادین کارزار درست کنند، مثل سابق، گورهای دسته جمعی بسازند، به رگبار ببندند و با خمپاره بکشند. وقتی بیداری اسلامی و محبت امیر المومنین در دل و دماغ قشر تحصیل کرده و روشنفکران کشور بیداد می کند، بگذار دولت اجیر به راحتی تمام سر سفره ی رسانه های گرویده و تبشیری اداره صلیبی خود تناول کند .آیا نیروی زننده ای هست که در برابر جریان خودجوش مردمی و پایگاه های نیرویی طاغوتی و بالنده استکباری، مجال ایستادگی و مقابله با این تشکل خودجوش مردمی را نخواهد داشت، پیکر استعمار از همت والای شما سوگواران و ماتمزدگان لیلیه پوهنتون کابل می لرزد، سلام و رحمت الله بر شیر دادگان شما باد، به الله قسم رژیم فرمایشی جان کری خزان کرد، بازار یکتاپرستی و حق طلبی را گرم نمودید، بالندگی و شهکار ایمانی تان همچون مروارید گرانبها در فضای اشغالی کابل درخشید. پیکر لرزان استعمار به لرزه در آمد، بستر امید کسانی را که بر طبل اشغال و بردگی می رقصیدن از همت والای شما مدافعان امیر مومنان گسست. هیبت الهی را در دل های مذبذب شان کاشتید .با باطل مبارزه کردید، و ساختارش از بین بردید و شوکت شانرا در هم شکافید. حمل کردن مسؤلیت توحید و جهاد و گردن نهادن به فرامین این دین، وجیبه دینی و اسلامی شماست .این ملت افغانستان است که از دولت تحمیلی و فرمایشی جان کری به ستوه آمده است، و درد و رنج بی عدالتی ها تنها متوجه حال طبقه خاص نیز نمی باشد، بلی فضای اشغالی و تکلیف نظام پوشالی غرب ؛ حقیقت انکار ناپذیر است که، امروزه گریبانگیر علماء ، امامان مساجد، تحصیل کرده ها، روشنفکران، متنفذین محل و در کل جغرافیایی کشور را بلعیده است .نظام را که امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله، بنا نهاد، با سرشت انسانی و غیرت دینی ملت مجاهد پرور کشور، مطابقت داشت و این نظام تنها در دل و دماغ علماء و کسانی که حقایق را با وجدان بیدار خود یافته بودند و از دل نوشته های اهل شرع و اسلام حقایق را جسته بودند، حکومت نمیکرد؛ و حامل این پیام سبحان بلند گو های نیز نیست؛ بلی امروزه الحمدلله؛ مونس و غمخوار اصلی امیرالمومنین کانون های علمی کشور می باشد. و در این میان جرأت بوی گند و تعفن اشغال را، تنها لائیک های بی دین و آیین فروختگان داخلی دارند استشمام می کنند و در سایه اشغال و تعدی به راحتی تمام می خوابند و خسته نمی شوند. در این زمینه هستند کسانی که با و جود که چهار دیواری محوطه سکونت شان با عساکر مزدور محصور گشته است، به خود جرئت می دهند، و ایمان راستین شان اقتضا می کند، تا باور های دینی خود را در هر شرایطی ممکنه، جامه عمل بپوشانند و دلهره و هراسی از بنی آدم نداشته باشند .

شمشیر تان، برنده باد!

# د دولت ناسمې اقتصادي تګلارې خلک ځوروي




ليکوال: انجينر عبدالرحمن

په افغانستان کې د ګډ حکومت له رامنځ ته کېدو راهيسې نږدې يو کال پوره کيږي، خو لاس ته راوړنې يې ډيرې کمې او له هيڅ سره برابرې دي. د ټاکنو پر مهال اشرف غني او عبدالله عبدالله د رايو اخيستلو لپاره له ملت سره ډيرې ژمنې کړې وې، اشرف غني د خپل کمپاين پر مهال داسې لاپې وهلې، او برنامې خلکو ته وړاندې کولې، که چا به پرې فکر وکړ، نو ويلې به يې چې له وران افغانستان څخه به بې بيلګې هېواد جوړ کړي. سل ورځنيو پلانونو او مياشتنيو حسابونو يې سر وخوړ، نه کوم وزير سل ورځنی پلان ملت ته وړاندې کړ، او نه کوم رييس مياشتنی حساب ورکړ. وزير هم په مزو کې دی او رييس هم په چړچو کې. ملت بيا هم خوار و زار دی. مليونونو کسانو ته د دندو د پيدا کولو خبرې، او د ټول ملت د غوږ دسترخوان اترې، هر څه او بو يوړل، هغه خوب و چې هيڅکله رښتيا نه شو او نه به شي.

د ګډ حکومت د نورو ټولو تګلارو په څېر اقتصادي تګلارې هم ناسمې او کرغېړنې دي، په هېواد کې د بيکارۍ کچه د پخوا په پرتله ډيره شوې ده، واردات مو ډير شوي دي، د افغانۍ ارزښت ريکارډ کچې ته رالويدلی دی، کلنۍ بوديجه د پخوا څخه ډيره په مرستو ولاړه ده، له هېواد څخه د ځوانانو د وتلو او اروپايي او نورو هېوادونو ته د تللو سلنه پورته تللې ده، هره ورځ نږدې پنځه سوه هېوادوال په قاچاقي لارو د اروپا پر لور ځي او په زرګونو نور د پاسپورټ غوښتنه کوي. خارجي شرکتونه چې په افغانستان کې يې پانګونه کړې وه، نږدې پنځوس سلنه يې له افغانستان څخه يا وتلي او يا د وتلو په تکل کې دي، انجينر هم بيکاره، ډاکټر هم بې روزګاره، نه ښوک ابادي کوي، نه ښوک ودانۍ ته زړه ښه کوي، هر سړی وارخطا دی او په امتحان کې مبتلا دی، ځوان هم لاس تر زنې ناست، د زوړ او ووړ هم همدا حال دی، نن يې هم تياره دی، سبا هم ورته تور تم ښکاري، د هر وګړي په سترګو کې نم ښکاري، نه کوم اميد شته، نه کوم سباوون برېښي، هر سړی هر وخت په وېره کې دی، اداري فساد په اوج کې دی، د يوې امضاء لپاره او د خپل ژوند د بقاء لپاره به زرګونه ډالر ورکوې، پوښتنې او روغتون دواړو کې رشوت چليږي، که زر لرې يا زور لرې، نيمه زده کړې او لوړې زده کړې، دواړه کولی شې، خارج ته هم تللی شې داخل کې هم ګرځيدلی شې، که زر نه لرې، زور او واسطه نه لرې، نو دلته به کړيږې، ځوريږې او هره ګړۍ کې به لس ځل وژل کيږې.

د دولت بوديجه په مرستو ولاړه ده، خو بيا هم له خپلو امکاناتو ګټه نه پورته کوي، خاوره او هوا زموږ ده، ګټه ترې نور پورته کوي، نه پرې کومه ماليه شته او نه کومه بدله. که يوازې له هغو مالونو چې د افغانستان له لارې يې نور هېوادونه نورو ته انتقالوي، په سمه توګه ماليه واخيستل شي، د دولت د بودېجې لپاره کفايت کوي، که يوازې طبعي زېرمې مو راوسپړل شي، زموږ د يو نيم سل کلونو ضمانت کوي.

د هېواد شپېته سلنه وګړي ځوانان دي، ځوان د ټولنې د ملا تير دی، ځوان هغه ښوک دی چې ملتونو ته نيکبختي او نيکمرغي راوړی شي، ځوان هغه ښوک دی چې ناممکن په ممکن بدلوي، ځوان هغه ښوک دی چې هر کار په اغېزمنه توګه سر ته رسولی شي، ځوان هغه ښوک دی چې ټولنه پرې باور کولی شي، ځوان هغه ښوک دی چې په لړو امکاناتو ډېر کار کولی شي، او ځوان هغه ښوک دی چې د هر غم زغم لري، خو له دې ټولو سره بيا هم زموږ څلوېښت سلنه ځوانان بيکاره او بې روزګاره دي، انرژي او ځواني يې په خرافاتو او بې ګټې کړنو کې ضايع کيږي، ښوک نشيان او ښوک ليونيان شول، د ځوانانو وزارت لرو، په هر ولايت کې يې رياست لرو، خو يو ښو ځوانانو ته د کار پيدا کولو وړتيا په کې نه شته، وزارت د ځوانانو دی خو وزير زوړ دی، نو ته وايه داسې وزير به څه وي او لاسته راوړنه به يې څه وي؟!!!

د بې کارۍ کچه د هرې ورځې په تېرېدو سره لوړېږي، په سلګونو زره لوستي کسان چې لوړې زده کړې لري، نه شي کولی چې معمولي دنده پیدا کړي، نو خود به په مرګونو لارو نورو هېوادونو ته مخه کوي. د کارګرو د نړېوالې ورځې په مناسبت د افغانستان د ملي کارګرانو اتحادیې مشر پژواک ته وویل، چې اوسمهال په افغانستان کې تقریباً ۱۳ ملیونه خلک بې کاره او یا په کم مزد کار کوي. دا چې آیا رېښتیا به هم په افغانستان کې همدومره بې کاري وي، د پوښتنې وړ ده؛ خو بیا هم له دغو ارقامو پرته د بې کارۍ موضوع په افغانستان کې ډېره جدي ده او ورځ تر بلې د بې کارانو شمېره زیاتېږي. هره ورځ په زرګونو ځوانان د پاسپورت دفتر ته ورځي څو پاسپورت تر لاسه کړي او خارج ته ولاړ شي، په سلګونو نور بیا هره ورځ د ایران او پاکستان له لارې د قاچاقبرانو په مرسته ځان اروپایي هېوادونو ته رسوي، یا ورسیږي یا نه، یا د ماهیانو خوراک شي او یا د انسانانو د ظلم، زور لاندې کباب شي. ځینې ځوانان خو د اروپا او امریکا ویزې تر لاسه کولو په خاطر له مذهبه تیر شول، خپله ژبه او کلتوریې پرېښود، نه یې خپل تاریخ سترګو ته ودرید او نه خپل پلار او نیکه وریاد شول. ځینې نورو خو د یو څو روپو تر لاسه کولو په خاطر، او له نفقې څخه د ځان خلاصولو په خاطر خپلې د زړه ټوټې وپلورلې، دوه کلنې او درې کلنې لورانې یې له خپلې غیرېې بېلې کړې.

اوبه زموږ دي، ښارونه پرې نورو رڼا کړي، زموږ په اوبو برېښنا جوړوي او په همدې برېښنا فابریکې او صنعتونه کوي، همدا صنعت او تولید چې په څو د دوی خوښوي، په هغه بیه یې پر موږ پلوري، د کنړ سیند پاکستان ته او د هلمند سیند ایران ته بهیږي، دا ځکه چې وزیر مسلکي نه دی او مدیر باتدبیر نه دی. د هیواد پنځه اویا سلنه وګړي په یوویشتمه پیړۍ کې د برېښنا له نعمت څخه محروم دي، هغوی چې برېښنا لري هم ډېره یې پردۍ ده، دغه برېښنا هر وخت په موږ قطع کېدای شي، او په څو لحظو کې مو ټول ښارونه تیاره کېدای شي، د سیند په غاړه ناست تږي یو.

په ننګرهار، مزار، کندهار، هرات... کې په نوم صنعتي پارکونه لرو، په زرګونه جریبه ځمکه یې ورته بېله کړې ده، خو یوه د کار فابریکه په کې نه لیدل کیږي او دیوې روپۍ ګټه یې نه تر سترګو کیږي. واردات مو د صادراتو پنځه برابره دي. د ۱۳۹۴ کال په لومړۍ ربعه کې دافغانستان صادرات ۱۱۶.۲۲ ملیون ډالره او واردات یې بیا ۱.۹۱ ملیارد ډالره وو. د زراعت په سکتور کې شپېته سلنه وګړي لګیا دي، خو په ناخالصو کورنیو تولیداتو کې د زراعت د سکتور برخه شل سلنه ده، د صنعت د سکتور شپږویشت سلنه او د خدماتو د سکتور څلور پنځوس سلنه ده، نو ویلی شو هغه خلک چې له زراعت څخه عایدات لري، د هېواد تر ټولو غریبه طبقه ده. په کار خو دا وه چې تر ټولو ډېر پام زراعت ته شوی وای ځکه تر ټولو ډېر خلک په کې بوخت دي، خو چا ته ژاړې او له چا ژاړې؟!!!

د نړیوال بانک له راپور سره سم له ۲۰۰۱ کال راهیسې تر ۲۰۱۲ کال پورې د افغانستان کلنۍ اوسط اقتصادي وده ۹ سلنه وه. په دغه ټول پړاو کې تر ټولو ښه کال ۲۰۰۹ کال و، چې اقتصادي وده پکې ۲۱ سلنه وه. خو له ۲۰۰۹ کال وروسته، اقتصادي وده په کمېدو شوه. په ۲۰۱۰ کال کې ۸.۴ سلنه، په ۲۰۱۱ کال کې ۶.۱ سلنه، په ۲۰۱۲ کال کې ۱۴.۴ سلنه، په ۲۰۱۳ کال کې ۱.۹ سلنه او په ۲۰۱۴ کال کې بیا ۲ سلنه شوه. په ۲۰۱۲ کال کې د اقتصادي ودې لوړوالی د زراعت په سکتور کې د تولید زیاتوالی و. د اسیا د پرمختیایي بانک د اټکل له مخې که امنیتي او سیاسي ټیکاو رامنځ ته شي، نو اقتصادي وده به ۲.۵ وي، خو که حالات همداسې وي نو دغه وده به هم ګرانه وي.

که یو ښوونکی په ښوونځی کې مقررېږي، لږ تر لږه زر ډالر باید رشوت ورکړي، چې د ښوونکي د یو کال له تنخا سره برابر دی، مطلب دا ښوونکی له وظیفې سره سره یو کال نور هم بېکاره دی. په وزارت او ریاست کې د غریب خو د وړ افغان د مقررېدو سوال نه پیدا کیږي. هماغه مقرر دی چې وکیل یا وزیر یې واسطه وي، وړتیا او زهیرتیا نه شته، که هر څو وړ یې، خو چې واسطه ونلرې، وکیل یا وزیر ونه پیژنې، نو په تا سترګې پټې دي، ته وړ نه یې.

دوه سرې حکومت د جان کیري انتخاب دی، د ولس انتخاب نه دی نو ځکه د ولس ستونزې نه شي درک کولی. نن دی که سبا دی په پرځیدو دی، مېکر هم خلکو ته مالوم شو، او ډاکټر هم. دوی په اسلامي او ملي ارزښتونو سوداوې وکړې، چې نه به یې خدای معاف کړي او نه دا ملت.

پە تېرو پسې...

# د ترکستان شپې

## په زړه پورې تاریخي ناول

### ډاکټر نجیب الکیلاني / ژباړه : سید جمال حماس

زه د خپل یو دښمن په کور کې اوسم، دا یوازې دښمن نه دی، بلکې داسې یو پوروړی دی، چې هغه څوک یې هم نیولی چې ما ورسره مینه کوله، زه داسې فکر کوم که دلته یو کال نور هم تېر کړم نو له ما به یوه اله جوړه شي، زه به هم د نجمة اللیل په څېر یو انسان بدل شم، نو ارام ژوند، پوره خوراک او لباس، ارامي او ښایسته ژوند دا ټول هغه څه دي چې په انسان کې د پاڅون مقابلې او جهاد روح وژني، بله ستونزه دا چې زه د نجمة اللیل په سترګو کې نا اشنا ګرم او تېز شوقونه وینم، زه د هغې له سترګو شرمېدم او ډېر ځله به ورڅخه تښتېدم او ډېرې شپې به مې د هغې په اړه فکر هم کاوه، غیرت به مې پرې کاوه، په دې کور کې شیطانان، هوسونه او تېروتنې ژوند کوي، پرون په دې کور کې د ګډا یو مجلس جوړ شو، ټول د یو بل سره ګډوډ شول، نجمة اللیل د مجلس ستوری و، سترګې ورپسې وې، هر افسر د هغې سره ګډېدل غوښتل، مېړه یې دومره شراب وڅښل چې ښه نشه شو، خو په سهار کې یې د یو مهم کار لپاره راوغوښت، هغه راووت، له نشې ځنګېدو، غټ کوټ یې اغوستی و، کار عادي ښکارېده، خو هغه زما خونې ته راغله، د ټولې شپې وینښې له امله یې د مخ زیړوالی نور هم زیات شوی و، لاسونه یې رانه تاو کړل او شونډې یې رانژدې کړې....

باداري، زه باید سباناری چمتو کړم.

زه د هیڅ اشتها نه لرم، او زه ستا باداره نه یم.

ټوله مانۍ سترګې سترګې دي.

نور صبر نه شم کولای.

څه معنی؟

نه پوهېږې؟

زه خیانت بد ګڼم.

خاین سره خیانت کول تېروتنه نه ده.

زه یو مسلمان یم، الله پېژنم.

ایا له مېړه یې غېږ اخیست او که ماته یې یو ډول نرمي او شفقت وړاندې کاوه او که دا پخوانۍ مینه ده چې بیا په جوش راغله او باغي شوه، زما لاسونه یې ونیول، په زاریو شوه، خو زه یې له نظر او لمسولو له دې وېرې په تېښته وم، چې مقاومت به مې کمزوری شي، په جذباتي انداز کې مې وویل:

د غرونو په لمنو کې داسې سړي دي چې د لوږې او عذاب له امله ځورېږي.........

هغوی حقیقي نارینه دي، خو بیا هم هغوی خپل ژوند کوي.
په هغو حدودو کې چې الله مباح ګرځولي.
د ورېي ځیروونکي لبوه په ځبر یې راوکتل او په ګوانبوونکي ډول یې وویل:
ته پوهېږې چې زه تا ته په سزا درکولو هم قادره یم.
ایا مینه همدا ده؟
هو.
کله چې ته د دوی په یو وېروونکي زندان کې ایسار شې، شا او خوا دې تیارې او چوپتیا وي، قمچینې دې په بدن تودېږي، بیا به ته دا خوب ووینې چې کاشکې زما په څنګ کې څو دقیقې تېرې کړې.
ما ورته په باوري انداز وویل:
ما مرګ ته ځان نذر کړی.
ته اور سره لوبې کوې، ته زما حقیقي مېړه یې.
خو ته د یو داسې سړي په نکاح کې یې چې مسلمان شوی دی، که څه هم اسلام یې ظاهري بڼه لري.
نو بیا دلته ولې راغلې؟
دې پوښتنې حیران کړم، رښتیا هم ولې راغلم؟ ما ټول ژوند د دغو تجاوزګرو نه د غچ اخیستلو په اړه فکر کړی دی، خو اوس انتقام چرته دی؟ زړه مې ودربېده، خو یو حقیقت هم و چې ما پټولو، ما د نجمة اللیل سره مینه کوله، دې ماڼۍ ته زما د راتګ سره موافقې د هغې سره اړیکه درلودله، هغه ولاړه او زه یې پرېښوم، ټوله ورځ مې ونه لیدله، فکر مې کاوه چې ولې حالات خرابه شول؟ زموږ په ځمکه پردي حکومت کوي، پخوا ماته د (کاشغر) د یو مسجد خطیب ویلي وو:
بچیه! اسلام عزت دی، څوک چې پرې منګولې ولګوي، هغه عزتمند کیږي، که چا پرېښود ذلیل به شي او زموږ هیواد په ژور خوب کې دی، ارام، بې هودګي او عبثیات پرې غالبه شوي دي، له دین نه ورو ورو لرې کیږي، بچونیه! شتمنۍ ځای ونیو، حکمت له لاسه ووت، علماء د امراؤ په وړاندې ټیټ شول، فساد، بې وزلي او جهالت عام شو، ګناوې خپرې شوې، بچیه! همدا د نړېدو پیل دی، او همدا راز ویې ویل:
په ختیځ او لویدیځ کې دښمنان دي، هغوی د زیاتوالي او ځواک لمن نیولې او موږ د پخوانیو ویاړونو لمن نیولې، خو پخواني ویاړونه او ښېګڼې په یوازې ځان نه شي کلکېدای.
ماته یې وویل:
بچیه! مسلمانان سره ټوټې ټوټې دي، په ترکیه کې جنګونه او ظلمونه دي، عرب د دښمن د اسونو د سومانو لاندې غلي پراته دي، خو کفر یو ملت دی او مسلمانان ګڼ ملتونه دي، اوس نو ته کولای شې د دې تعبیر خپله وباسې چې بریالیتوب ولې او ماتې ولې رامنځته کیږي.
دا خبرې زما ډېرې ښې یادې دي او نورې ورته خبرې چې خواجه نیاز، جنرال شریف او نورو به بیا بیا ویلې، هغوی زړور مسلمانان وو، د جګړې په ډګر کې بې له وېرې الله سره مخ شول، دې کې شک نه شته چې دې ماڼۍ ته زما راتګ د شیطان دسیسه ده، باید ښېرته ولاړ شم، او سمدستي ولاړ شم، خو باید د هغه وخت په بدل کې چې دلته مې ضایع کړ یو څه وکړم او بیا به په غرونو کې مېشتو سړیو ته په منډه ورځم.
ویل کیږي چې زموږ یو زړور مشر عثمان باتور خلک راټولوي او د نوي پاڅون تیاری نیسي، نو زه ولې دلته پاتې شم؟
د مېړه په غیاب کې نجمة اللیل کوښښ کاوه څو هغه څه چې زما په زړه او سر کې ناست وو، محوه او پاک کړي، خو ما مقاومت کاوه، خو مقاومت هم سخت و، نجمة اللیل قاتلې اداګانې درلودې، په دې ضابط د هغې واک

او داسې عجیبه واکمني بې له دې چې هغه ډېره ځواکمنه ښځه وه بله معنی نه لري.
ضابط دوه ورځې وروسته بیا راغلو، ستړی او سرګردانه و، ویې ویل:
موږ د نویو ستړتیاوو په درشل ولاړ یو.
ولې؟
عثمان باتور او نورو پاڅون کوونکو چریکي جګړه پیل کړه.
تاسې ته نو څه زیان رسوي، ګومان کوې هغوی به تاسې ته ماتې درکړي؟
هغوی په صنعتي مرکزونو ناڅاپي بریدونه کوي، افسران تښتوي، ډېر خلک یې ووژل، که په ازاده جګړه کې وای نو له بیخه ختمول یې شوني و.
د هغې په سترګو کې د خوښۍ بریښنا وځلېده خو پټه یې کړه، هغه په خوراک او څښاک اخته او فکر وړی و، ماښام خبر شوم، چې هغه دواړه یوازې د باندې یو ځانګړي باغ ته د چکر لپاره وتلي، ډېر وځنډېدل، خو نیمه شپه راستنه شوه، یو شور او ځوګ هم ورسره ملګری و، ماڼۍ له افسرانو او استخباراتو له مشر نه ډکه شوه، څه شوي؟ مېړه یې په مرګوني مرمۍ لګیدلی، هغه یې هم ماڼۍ ته راووړ، هغې چغې وهلې ژړل یې ویښتان یې ایستل، او همدا یې ویل:
ما قاتل ولیده، ډز یې وکړ، په اس سپور شو او د نهر خوا ته ولاړ، د لسګونه زره خلکو په منځ کې یې هم پیژنم.
چغې او فریاد یې ویست، د خلکو په سترګو کې هم غوصه او خفګان ښکارېده، له غمژني کوندې یې په داسې حال کې پوښتنې پیل کړې چې هغه په خپلو اوښکو کې ډوبه وه، هغوی غلې کوله، خو هغې هغوی غچ، انتقام او په اورومچي کې د هر شکمن کس نیولو ته هڅول.
د استخباراتو یو مسئول وویل:
دا نن په اورمچي کې درېیمه پېښه ده، د عثمان باتور خلک تشویشونه پیدا کوي، له تشدد پرته بله لار نه شته او لا زیاته سختي، ما وویل باید هر شکمن ترکستانی ووژنو، خو هغوی یې ردوي، زما نظر دا دی چې ټول ترکستانیان شکمن دي، زه پوهیږم چې دغه خاینان څنګه په ښه کړم، اجازه به ورنه کړم چې پېښې همداسې بې له سزا روانې وي، موږ په اورومچي کې بېړنی حالت اعلان کړی دی.
نجمة اللیل په غم، درد او ستړتیا کې وه، خو حیرانوونکې دا وه چې د وژل شوي ضابط ډېرو ملګرو هغې ته دلاسا ورکوله او تعزیت ته ورته راتلل، د هغوی په سترګو کې مې خوښي او امید لیده، ډېر د نجمة اللیل په تمه وو، سره له دې چې د مړي وینې نه وې وچې شوې، نجمة اللیل پرېکړه وکړه چې کور کې به یوه اونۍ ګوښه کیږي او هیڅ سره به نه مخ کیږي، په ښار کې چې څومره خولې هومره خبرې، اوازې زیاتې شوې، وېره پرې خپره شوه، پردي افسران هم سخت په تنګ وو، زمري او پړانګان اوس د سویکو په شان بریښېدل، زه له دې ماڼۍ د تګ په حال کې وم، خو دې پېښې مې تګ وځنډاوه، زه باید انتظار وکړم، یو ماښام زما خونې ته راغله، زه راپاڅیدم، او ومې ویل:
باداري.

***




# دمولوي انوارالحق مجاهد له خوا د توره بوره جهادي محاذ ددلګیو د لغوه کولو او په نوي ترتیب د جهاد د دوام اعلان

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله ، والصلاة والسلام على رسول الله.

قل ان صلاتي ونسكي ومحياى ومماتي لله رب العلمين.

وبعد : په دې کې شك نشته چې جهاد شرعي مکلفیت دی او دا الهي سنة او قاعده ده ، چې ( لا يكلف الله نفساً الاوسعها ) ، نو ځکه هر مسلمان مکلفیت لري ، چې دخپلو وسائلو ، امکانیاتو ، ظروفو او شرائطو سره سم دغه فریضه اداء کړي.

خو دا چې جهاد مختلف مراحل لري او په هر وخت او ځای کې ځانګړې تاکتیك ته اړتیا وي او مجاهدین د خپلو شرائطو سره سم هغه طریقه غوره کوي ، چې په هغې سره خپل هدف ته په اسانۍ سره رسیږي.

څمونږ مسلمان او مجاهد ولس ته معلومه ده ، چې مونږ له تیرو څو کلونو څخه راپدیخوا د صلیبي دښمن په خلاف د توره بوره جهادي محاذ په چوکاټ کې خپل مسلح او مطبوعاتي جهاد ته ادامه ورکړې او په دې لاره کې مو له هیڅ راز قربانۍ څخه سر نه دی غړولی ، ددې لپاره چې داسلام مقدس دین حاکم شي او مسلمان او مجاهد ولس مو دظالمانو له ظلم او د یرغلګرو له تیري څخه نجاة ومومي ، په سوونو شهیدان ، معیوبین او محبوسین مو ورکړل ، اوس چې مونږ ګورو څمونږ په ساحه کې داسې مشکلات رامنځ ته شوي ،چې مونږ په موجوده جهادي ترتیب کې خپل مقدس او عالي هدف ته په اسانۍ نه شو رسیدلای ، نو ځکه مو د هغو اجتماعي ، سیاسي ، نظامي او اقتصادي مشکلاتو پر اساس چې مونږ ورسره فی الحال مخامخ یو ، فیصله وکړه ، چې دښمن سره د مقابلې او خپل جهادي هدف ته درسیدو لپاره په نوي ترتیب او تاکتیك خپل جهاد ته ادامه ورکړو او دخپل اصلي دښمن په ملا مرګوني ګوزارونه وکړو ، تر څو په بریالۍ توګه خپل هدف ته ورسیږو ان شاءالله ، مونږ خپل مجاهد ولس ته دا اعلانوو ، چې له دې وروسته د ننګرهار په ولایت کې خصوصاً په اطرافو کې مونږ د توره بوره د محاذ او یا د انوارالحق مجاهد د ملګرو په نامه هیڅ کومه مستقله مروجه دلګۍ او ډله نه لرو ، نه د کومې دلګۍ د کوم کار مسؤلیت په غاړه لرو او نه څمونږ سره کوم تړاو لري . البته د یادونې وړ ده ، چې څمونږ ټول ملګري باید په نوي تاکتیك او ترتیب د صلیبي دښمن پر خلاف د جهاد سنګر ګرم وساتي او داسلامي نظام تر حاکمیت پورې خپل جهاد ته ادامه ورکړي . وماذلك على الله بعزيز

مولوي انوارالحق مجاهد

دافغانستان داسلامي حزب دامیر مولوي محمد یونس خالص بابا رحمه الله ځوی او ځای ناستی

۲۱/۱۲/۱۴۳۶هـ ق
۱۳/۷/۱۳۹۴هـ ش
2015/10/05م

# الهي فرمان

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا لَقِيتُمْ فِئَةً فَاثْبُتُوا وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ (٤٥) وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ وَاصْبِرُوا إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ (٤٦) وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ خَرَجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ بَطَرًا وَرِئَاءَ النَّاسِ وَيَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ وَاللَّهُ بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطٌ (٤٧) وَإِذْ زَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ أَعْمَالَهُمْ وَقَالَ لَا غَالِبَ لَكُمُ الْيَوْمَ مِنَ النَّاسِ وَإِنِّي جَارٌ لَكُمْ فَلَمَّا تَرَاءَتِ الْفِئَتَانِ نَكَصَ عَلَى عَقِبَيْهِ وَقَالَ إِنِّي بَرِيءٌ مِنْكُمْ إِنِّي أَرَى مَا لَا تَرَوْنَ إِنِّي أَخَافُ اللَّهَ وَاللَّهُ شَدِيدُ الْعِقَابِ (٤٨) :الانفال

ژباړه : اى هغوكسا نوچې ايمان يې راوړى دى ( يعنې اى مؤمنا نو ) كله چې مخامخ شئ كوم فوځ ( ددښمن ) سره ( چې جنګ درسره كوي ) نوثابت قدم اوسئ تاسې ( اومه ترې تښتئ ) اويادوئ تاسې الله ډير ( په خوله اوزړه ) ښايي چې تاسې په مرادورسيږئ ( په بري سره پردښمن دذكرپه بركت ).

اوحكم ومنئ تاسې دالله اودرسول ددغه ( الله ) اومه كوئ جګړه په خپلومنځونو ( په كاردجهادكې ) پس بې زړه به شئ تاسې اوولاړبه شي باد ( د نصرت اوقوت اوددولت ) ستاسې اوصبركوئ ( په قتال اوسختيو ) بيشكه الله له صابرا نوسره دى ( په جنګ كې په نصرت اوحفاظت ) اومه كيږئ ( اى مؤمنا نو ) په شان دهغوكسا نوچې راووتل له كورو نوخپلولپاره دفخرا و ښودا نې خلكوته ( شوكت ، دبدبه خپله ) اوآړوي دوى ( خلك ) له لارې دالله څخه ، اوالله پرهغوكارونوچې كوي يې دوى محيط ( چاپيردى علم اوقدرت دده نوجزابه پرې وركړي ).

او ( يادكړئ ) هغه وخت چې ښائسته كړى ووددغو ( كفارو ) ته شيطان عملونه ددوى اووې ويل چې نشته هيڅ غالب پرتاسې نن ورځ له خلكواوبيشكه زه ساتونكى يم ستاسې ، نوكله چې سره وليدل ( مخامخ شول ) دواړه فوځونه ( داسلام اوكفر ) بيرته يې منډې كړې په پوندوخپلو ( يعنې وتښتيده ) اووې ويل بيشكه زه بيزاريمه له ( ساتنې ) ستاسې اوبيشكه زه وينم هغه ( فوځ دملائكوچې راځي په معاونت دمؤمنا نو ) چې نه يې وينئ تاسې بيشكه زه ويريږم له الله اوالله سخت دى عقوبت ( دده ).

